# شين سترگي مستخدمين

## ( په افغانستان کي )



لیکوال :

**محمد معصوم هوتک**

# شین سترګي مستخدمین

## ( په افغانستان کي )

لیکوال:


محمدمعصوم هوتک

تورنتو ـ کاناډا





**PUBLISHED BY:**
**Sahaf Book Publishing Institution**
**Quetta**
**2006**

# د خپروونکي یادښت

دا اثر چي فاضل لیکوال د" شین سترګي مستخدمین" نوم پر ایښی دی د حجم او ظرفیت له مخي کوچنی اثر دی.

خو دمفهوم په لحاظ خورا غني او له معنیٰ ډک اثر دی. ښاغلي لیکوال د غربي او افغاني منابعو په حواله اکاډمیک کوشش کړی دی او داسي مواد یې په دغه اثر کي سره راټول کړي دي چي د افغانستان په نني وضعیت کي د عبرت درس ځني اخیستل کیږي، نن هم د "این جوګانو" رفاهي او عمراني مؤسسو په تشکیلاتو کي اماتور انجنیران، کارپوهان او تخنیکي ماهران هڅه کوي چي د افغانستان د بیا جوړولو په نوم جیبونه ډک کړي او په اصطلاح یو ځل بیا تاریخ تکرار کړي.

ښاغلو لوستونکو ته دي معلومه وي چي هر سورمخی او شین سترګی زړه سواند نه دی او نه د یوه عالي او پرمخ تللي کلتور نماینده دی.

موږ افغانانو ته په کار ده چي خپل هرڅه د پردو په لاس جوړېدو ته پرې نه ږدو.

هوتک صاحب خو زيار ګاللی دی چي د تيرو وختو د ناوړو پېښو په هکله موږ ته مستند مواد په لاس راکړي، په راتلونکو وختو کي به هم د هوتک صاحب په څېر يو څوک پيدا کېږي او ناوړي څېرې به لکه څنګه چي دي هماغسي ښيي.

د هوتک صاحب دغه اثر د يوه تاريخ حيثيت لري او د تاريخي پېښو لوستل د نړۍ د پوهانو په قول انسانانو ته د عبرت توصيه کوي.

صحاف نشراتي مؤسسه د خپلو نشراتو په لړ کي د (شين سترګي مستخدمين) نشرول يو نېک فال بولي لوی څښتن دي هوتک صاحب او د هيواد نورو ليکوالو او ناشرانو ته دا توفيق ورکړي چي داسي آثار وليکي او خپاره يې کړي چي زموږ د زورول سوي ولس ښېګڼي پکښې وي.

په پای کي هوتک صاحب ته زموږ اداره د دې اثر مبارکي وايي او په دې لار کي د نورو هڅو توان له لويه خدايه ور ته غواړي.

**د صحاف نشراتي مؤسسې اداره**

**کوټه ــ ۲۰۰۶م پسرلی**

۵

# فهرست

شمیره سرلیک مخ

6

## دوهمه برخه ـ د امیر حبیب الله خان
## (سراج الملةوالدین) دوره








**د كتاب پېژندنه:**



| | | |
|---|---|---|
| د كتاب نوم | :: | شين ستر گي مستخدمين (په افغانستان كي) |
| ليكوال | :: | محمد معصوم هوتک |
| د ليكلو كال | :: | ۲۰۰۳ م |
| د ليكلو ځاى | :: | ټورنټو ـ كاناډا |
| د چاپ ځاى | :: | يونايټيډ پريس ـ كوټه |
| د چاپ كال | :: | ۱۳۸۵ل ـ ۲۰۰۶م |
| د چاپ شمېر | :: | ( ۱۰۰۰ ) زر ټوكه |
| خپروونكى | :: | صحاف نشراتي مؤسسه |
| كمپوز او ډيزاين | :: | د صحاف نشراتي مؤسسې اداره |
| بيه | :: | ( ۶۰ ) كلداري |

# سریزه

امیردوست محمدخان (۱۷۹۲ـ ۱۸۶۳م) د خپل امارت په لومړۍ دوره کې د خپلو نهه ویشتو وروڼو یوه جرگه د کابل په ښار کې را و غوښتله، چې ریاست یې د ده مشر ورور نواب عبدالصمد خان کاوه (دوهمه خور ۱۲۴۲ق). د افغانستان د هماغه وخت تاریخي قلمرو یې د خپل پلرني میراث په توگه پخپلو منځو کې سره وندۍ کړ، چې هر یوه پخپله ور رسېدلې سیمه کې مطلق العنانه واکمني کوله.[1] په دې ډول یې د احمدشاهي پاچهۍ پیاوړی مرکزي

---

[1] دغه مهم سند د افغانستان په ملي ارشیف کې خوندي دئ. د دغه سند له مخې کندهار (له شاه جوی څخه تر فراه پوري) د کندهاري وروڼو(کهندل خان و پردل خان و مهردل خان...)، کابل او کوهدامن تر بامیانه پوري د امیردوست محمدخان او د هغه د سکه ورور سردار امیرمحمدخان، د غلجیو حصارک د نواب عبدالجبارخان، لغمان و جلال آباد تر خیبره پوري د نواب محمدزمان خان او وروڼو، کوهاټ و هنگو(بنگښ) د نواب عبدالصمدخان، پېښور و اشنغر و توابع یې د سردار سلطان محمدخان او وروڼو، لوگر و بتخاک و میدان و غوربند د سردارمحمد عظیم خان د زامنو (سردارحبیب الله خان او سردارمحمداکرم خان) په برخه و رسېد.(و گورئ: پوهاندحبیبي ـ تاریخ مختصرافغانستان ـ۲۸۷مخ ـ چاپ۱۳۶۸ش) عام ولس له دغو واکمنیو څخه ناراضه و. د پښتو دېوان لرونکی شاعرحاجي جمعه بارکزی چې پر کندهار باندي د کهندل خان د واکمنۍ پر وخت ژوندی و، د احمدشاهي دولت پر ړنگېدلو باندي افسوس کوي او له دغه حالت څخه داسي سر ټکوي:

اوس نوبت د کندل خان دی — سره وې نغښت کندهار
و دانۍ یې کړې خرابي — عالمونې کړه ناتار
درست وطن یې په حصه کړ — سرې واخیست چار برار
دربدره یې مخلوق کړه — مال و ملک یې کړ سرکار
په وطن کې یې پرې نښوو — یو درم و یو دینار
سر بر یې سره وخوړ — لا دوی وږې دي نهار
که بانه یې سوه در پوري — نور پر پرده ملک و مزار
سر تور سر پښې یېلې درومه — گوره مه لیل و نهار
که دې خپل سر څني خلاص کړ — شکر کاږه په بار بار
یو خیرات هم پر څان وکه — که په پور وي که په دار

دولت له منځه یووړ او هیواد یې د څه مودې لپاره سره تجزیه کړ. په سره ټوټه افغانستان کې سرانښو ګاونډیو او انګریزي استعمار ګرو خپلې ګټې لیدلې او هر یوه پخپل وار د سیمه ییز واکمن سیله کوله او د نورو وروڼو په وړاندې یې تقویه کاوه. وروسته امیر دوست محمدخان د مرکزي دولت د اعادې په فکر کې سو او د امارت په دوهمه دوره کې یې د خپلو وروڼو نفوذ له منځه یووړ او پر ځای یې هیواد د خپلو زامنو په منځ کې و وېشه. دوی د خپل پلار په اجازه واکمني کوله او په دې ډول ګویا پر هیواد باندې یو راز مرکزیت واکمن و. دغه مرکزیت د امیر تر مړینې(۱۸۶۳م) وروسته بیا سره کمزوری سو، زامنو یې پخپلو منځو کې شخړې پیل کړې او هیواد ته یې د انګریزي لښکرو د بیا را بهیدلو لپاره پلمه برابره کړه. انګریزي لښکري د خیبر، کورمې او بولان له لاري پر هیواد را و بهیدلې او د هیواد پال امیر شیرعلي په زړه چاودني سره هیواد بې سره بې رهبره سو د کابل تخت انګریزي ګوډاګي امیرمحمد یعقوب خان ته و رسېد او د ګندمک شرمووںکی تړون پر افغان ولس تحمیل سو. د افغان و انګلیس دوهمه جګړه پیل سوه او ملي مبارزینو بیا د هیواد د خپلواکۍ او پیاوړي مرکزیت لپاره لېښي را وغښتل. د دغو هلو ځلو په لړ کې د غازي سردار محمد ایوب خان په مشرۍ ملي لښکرو د کندهار په میوند کې انګریزي یرغلګرو ته د ۱۸۸۰م کال د جولای پر اووه ویشتمه داسي سخت ګوزار ورکړ چي اغېزه یې د انګلستان تر پارلمانه و رسېده او د وخت واکمن ګوند له قدرته ولوېدی. انګریزانو د افغانستان په باب پر خپله پالیسي باندي نوې کتنه وکړه او د دې لپاره چي د یوه پیاوړي ملي دولت د جوړېدلو مخه یې نیولې او پر ځای یې خپل یو خواخوږی سردار تخت ته رسولی وي، له سردار عبدالرحمان خان سره د کابل د تخت پر تسلیمېدلو باندي موافقې ته و رسېدل او نوموړی سردار د امیرعبدالرحمان په نامه د کابل پر تخت کښېنوست. امیرعبدالرحمان خان د ژوند ډېري سړې و تودې لیدلي وې. د افغانستان د خلکو په خوی و خصلت او د انګریزي صاحبانو، روسي او پارسي ګاونډیو په نیت و مطلب پوه امیر و. له مطلقه واکمنۍ سره یې د زړه مینه وه او د همدې مقصد لپاره یې د هیواد



لیپل گریفین ، عبدالرحمان خان او جنرال ستیوارټ په دغه غونډه کي
انګرېزانو د عبدالرحمان خان پاچهي ومنله ۱۱ /اګسټ /۱۸۸۰ع

له خلکو سره په ډېر شدت و حدت او له انګرېزي حکامو سره په ډېره نرمۍ چلند کاوه. ده د اداري خورا پیاوړی استعداد درلود او په هیواد کي یې د خپلو مخالفینو له بې رحمانه ټکولو او مضبوط امنیت را وستلو وروسته د دولتي جوړښت د سمون او بدلون لپاره یو لړ کارونه و کړل او پرڅنګ یې د صنعت و تخنیک لوري ته تر هغي اندازې پوري پاملرنه واړوله، چي د ده واکمنۍ ته ګوابښ متوجه نکړي. ده په هیواد کي د کوچنیو صنایعو د ایجاد لپاره هلي ځلي او عملي اقدامات و کړل خو د اورګاډي د پټلۍ له غزولو سره یې په دې پلمه مخالفت کاوه، چي اورګاډی د بهرني یرغل په صورت کي د دښمن د پوځي انتقالاتو په ګړندي کولو کي مرسته کوي او که اورګاډی نه وي نو به بیا دښمن ته ډېره سخته وي، چي د افغانیستان غوندي غرني هیواد په لوړو و ژورو کي خپل پوځي قطعات اکمال کړي[1].

---

[1] دا نظر اصلاً د انګرېزانو و. لیون. بې. پولادا لیکي(انګلیسان تل له افغانستان څخه د اور ګاډي د تېرولو له موضوع سره له دې امله حساس وو، چي پر هندوستان باندي یې د روسانو د احتمالي برید له بابته اندېښنه در لو ده). نوموړی پولا دا زیاتوي (په افغانستان کي د اور ګاډي د غزولو پلان د امیر امان الله خان د اصلاحاتو یوه ډېره مهمه برخه وه. په لومړي سر کي یې غوښتل له کابله تر کندهاره پوري د اورګاډي پټلۍ و غزوي او وروسې یې هیله در لوده، چي له کندهاره یې تر هراته پوري هم لوړ ده کړي. اروپا ته د ده د سفر په ترخ کي یې په دې باب له الماني او فرانسوي شرکتو سره خبري وکړې او وروسې یې د وسلو د مشهور او رسوا شخص سر باسیل زهاروف Sir Basil Zaharoff په مشرۍ له یوې فرانسوۍ سندیکا سره د ارو ګاډي د سروې پر سر موافقه و کړه. دغه سروې د ۱۹۲۸کال په دوبي کي د یوه ټیم لخوا پیل سوه، چي مشري یې د مایکل کلیمینسیوMichel Clemenceau او پییرماکچیف Pierre Makcheefپه لاس کي وه ... دوی دواړو انګلیسي مقامات د سروې په جریان باندي خبرول. په سپټمبر کي کلیمینسیو او زهاروف په پاریس کي د انګلستان سفارت ته خبر ورکړ، چي له کابله تر کندهاره او بیا تر هراته پوري سروې د ماچیف لخوا په ډاډه توګه بشپړه سوې ده.) پو لادا دغه مطالب له هغه نیمه رسمي لیک څخه اخیستي دي،چي په پاریس کي د انګلستان شارژدافیر سر ټریوور ډاوسنSir Trevor Dawson لخوا د انګلستان د بهرنیو چارو د وزارت د ماوراء بحار د ډیپارټمنټ مشر سر اډوارډ کرو Sir Edward crowe ته د۱۹۲۸ع کال د سپټمبر پر اتلسمه نېټه لېږل سوی و. (و ګورئ: د Leon B. Poullada Reform and Rebellion in Afghanistan,۱۹۱۹-۱۹۲۹ لیکنه ـ ۱۴۲مخ-۱۹۷۳ع چاپ).

امیر عبدالرحمان په ۱۸۸۵م کال د بر تانوي هند د انګرېزي حکامو په بلنه له ګورنر جنرال لارډ ډفرین (Dufferin) سره د کتلو لپاره راولپنډۍ ته رسمي سفر وکړ. هورې یې له انګرېزي واکمنانو سره خپله دوستي نوره هم پسې پیاوړې کړه او پر څنګ یې ځیني صنعتي مؤسسي وکتلې او له ځینو بهرنیو ماهرانو سره یې په هیواد کي د یو شمېر کوچنیو کارخانو د جوړولو په باب خبري اتري، مشورې او قرار دادونه و کړل. یو شمېر بهرني ماهران یې پخپل شخصي لګښت استخدام کړل چي هغوی بیا په کابل کي د سکې وهلو، کارتوس او توپک و توپ جوړولو، آهنګرۍ، دباغۍ، بوټ جوړولو، صابون پخولو، او نورو سپکو صنایعو تاداو کښېښوو. پخپله امیر هم له لاسي کارونو او کسب و صنعت سره له وړکتوبه مینه درلوده. په دې باب د ده له خولې داسي لولو:(...وقتی طفل بودم از خواندن و نوشتن متنفر بودم، او قات خودرا در کارخانجات پدرم در کارنمودن با عمله جات مصروف میداشتم و اشتیاق مجددانه زندګانی من در آن زمان فقط این بود که عمل بنایی و تفنګ سازی و ریخته ګری و نجاري و آهنګری و کارهای دیګر رابیاموزم و درهمه این صنایع به خوبی ماهرشدم... درزمانی که درخاک روسیه سکنا داشتم... درآن وقت کار زرګری و میناکاری و تذهیب کاری وغیره آموختم.) [1]

د امیر په روزنه کي د جنرال شیرمحمدخان رول ډېر و. دا سړی جدید الاسلام انګرېز و، چي تر مسلمانېدو د مخه یې نوم کیمبل و.

علامه حبیبي د مستر کیمپل Campbell په باب لیکي:

(مستر کیمپبل چي د افغانستان په تاریخ کي په کیول مشهوره دئ، په ۱۸۳۳م کي له شاه شجاع سره له لودیانې څخه د کندهار پر لور حرکت وکړ. د کندهار په جګړه کي یې (۱۲۴۹هـق) د سردار اکبر خان

---

[1] سفر نامه و خاطرات امیر عبدالرحمان خان و تاریخ افغانستان ـ ایرج افشارسیستانی ـ ص۳۳۴ـ ۱۳۶۹ش . تر دې وروسته دغه اثر د (سفر نامه...) په نوم یادوم.

په مشرۍ د سردار دوست محمد خان د ۱۲زرو لښکرو په مقابل کي د شاه شجاع د لښکرو د دوو بتالیون مشري پر غاړه در لوده. د شاه شجاع تر ماتي وروسته په جګړه کي ټپي سو او د دوست محمد خان لښکرو ته په لاس ورغی. کیول تر دې پېښي وروسته په کابل کي د امیر د توپخانې افسر سو او د میاشتي یې ۴۰۰روپۍ معاش در لود.... د موهن لال په قول د کیول لومړی اسلامي نوم د اسلام د منلو په سر کي عبدالله خان و، خو د امیرعبدالرحمان په شهادت بیا... شیرمحمد خان و.)

(و ګورئ: اریانا مجله ـ۱۱ـ ۱۲ګڼې ـ ۵۷۱ ـ ۵۷۸ مخونه ـ ۱۳۴۴ش کال د شل مقالې، دریمه برخه، ۱۲۴مخ په حواله). د امیر په مستخدمینو کي ځیني عادي کسان او له خپل مسلک سره مینه وال خلک وو، چي د مادي امتیازونو او پیسو ګټلو په مقصد یې د امیر نوکرۍ ته غاړه ایښې وه خو ځیني یې بیا سیاسي خلک وو او امیر په سیاسي چارو کي ورسره سلا مشوره کوله. په صنعت او حرفت کي د دوی کار کول د پرنګیانو په اصطلاح سایډ بیزنس(Side Business) و. یو شمېر یې مطلق دوکه بازان او یوه ډله یې جاسوسان او له استخباراتي شبکو سره تړلي کسان وو. امیر په کابل کي د کارخانو او فابریکو لپاره اوسنی پل هارتل ته نزدې یوه ټوټه مځکه و ټاکله او پر دغه ځای یې (علم ګنج) نوم کېښښوو. دی وایي: (یک قطعه زمین که معروف به علم گنج میباشد و به جهت بنانمودن کارخانجات و فابریکها، مناسبت داشت انتخاب نمودم،زیرا که اراضی مذکور خارج از شهر کابل و متصل به شهر میباشد و این اراضی اززمینهای دیگر حول و حوش آنجا و سیع تر بود. علاوه بر این هوای آنجا هم سالم بود و این نقطه منظر خوبی داشت ویک طرف آن نهری بود که به جهت ماشینهاو دیگهای بخار و غیره در کارخانه آب برساند و طرف نشیب این زمین، رود کابل میگذشت که تمام فاضلاب کارخانجاترا می برد.)[1] په دغه وخت کي افغانستان په نسبي توګه له هغي انزوا څخه راوتلی و، چي

[1] سفر نامه ـ ص ۳۳۷

د څو لسیزو کورنیو جګړو له اسیته ور په پېښه سوې وه او د لویدیځي نړۍ یو شمېر خلک یې له نامه او مسایلو سره یو څه اشنا سوي وو. په انګرېزي مطبوعاتو کي د امیر او د هغه د کفایت او اداري په باب نشرات کېدل او ان تر دې، چي مستقل کتابونه د ده په باب ولیکل سول. زما د مطالعې له مخي په نونسمه او شلمه میلا دي پېړۍ کي د افغانستان په پاچهانو کي تر امیر عبدالرحمان او امان الله شاه پر ته د بل هیڅ یوه ټولواک په باب دومره زیات نشرات نه دي سوي.

د امیرعبدالرحمان په در بار کي له ځینو کسانو سره دا فکر و، چي د اروپایي ماهرانو د استخدامولو پر ځای به ښه دا وي، چي افغاني زلمیان بهر ته د تحصیل لپاره ولېږل سي. دې نظر دومره نفوذ کړی و، چي امیر مجبور سو پخپل کتاب(تاج التواریخ) د هغه د رد په باب څرګندوني وکړي. البته د امیر دربار د دې نه و، چي څوک دي په زغرده خپل نظرونه بیان کړلای سي خو له قراینو داسي ښکاري، چي خارج ته د افغاني زلمیو د لېږلو پلویان موجود وه. امیر د اروپایي اشخاصو چي معمولاً انګرېزان وو، د رابللو په برخه کي خپل اقدام داسي توجیه کړی دئ (بعضی او قات مر دم ازین رویه من که اهالی خارجه را به مملکت خود آورده ام، ایراد می نمایند و تعجب میکنند چرا به عوض اهالی افغانستان، معلم از خارجه می آورم، خود اینها را به فرنگستان نمی فرستم... جواب اینست: اولاً این اقدام خرچی گزاف داشت... ثانیاً مکرراً به اطباء و صنعتگرهای خود گفتم که پسرهای خودشان رانزد من بیاورند تا آنها را به ممالک خارجه بفرستم ... ولی این خواهش مرا غیر از خاموشی جوابی ندادند... ثالثاً اتباع من السنه خارجی نمی دانند. اگر به ممالک خارجه می رفتند، مدتها لازم بود که صنایع عملی بیاموزند... رابعاً بخیال من بعضی از مشرقیان که به اروپا بجهت تحصیل علوم می روند، بعوض اینکه فضیلت و قابلیت مردمان اروپا را اکتساب نمایند، عادات ذمیمه اروپایی ها را مثل شرب مسکرات و قمار و غیرها اخذ

و با خود حمل نموده و به وطن خود وارد مینمایند. ازین جهت به اعتقاد من کار عاقلانه این است که جوانان وطن خود را تحت نظارت خود تربیه نمایم ....)[۱] دا چي دې اوږده اقتباس به درانه لوستونکي د امیر په د لایلو قانع کړي وي که یا؟ زه څه نسم ویلای. خو امیر د خپل دغه اقدام لپاره ځان په قانع کړی و.

ځيني افغاني مؤرخين د اميرعبدالرحمان خان هغه کارونه، چي د يوې پياوړي مرکزي ادارې لپاره يې سرته رسولي وو او دا کارونه د هماغه وخت د سره ټوټه ټوټه افغانستان لپاره يوه بنسټيزه اړتياوه(لکه نن چي هم ده)، د ده د اداري شقاوت او استبداد تر سيوري لاندي راولي او سرسري پر تېرېږي. البته د منځنيو پېړيو مجازات او مطلقه استبداد ته خو د توجيه هيڅ راز لار نه برابرېږي، خو که څوک د(طالب) ټاپه راباندي ونه وهي، نو زما په نظر د سرې سينې څېړونکي د ده په ځينو اقداماتو، په تېره بيا په هيواد کي د بشپړ امنيت راوستلو او د صنعت د رواجولو په پروسه کي داسي نښانې موندلای سي، چي د يوه مدني نظام د راتلو لپاره يې عيني بنسټونه و بولي او لکه څرنګه، چي وينو د ده خلف اميرحبيب الله او د ده د دربار ځينو منورينو پر همدغو بنسټو باندي په هيواد کي د پوهي او تخنيک د رواجېدلو مبارزه بنا کړه او پر مخ يې بوتله. د سراجي عصر منورينو د يوه پياوړي مرکزي دولت په نستوالي کي د خپلو ارمانو تحقق ته لار نسوای موندلای. د دې خبري يادونه به هم ضروري وي، چي د دغو تخنيکي او صنعتي تشبثاتو انګيزه پخپله دربار او د هغه اراکينو ته د نسبتاً مدني او عصري ژوند برابرېدل و. ولس ته يې کومه ښېګڼه نه رسېدله. امير که د بر ښښنا جنرېټر دراوه، مراد يې د پاچهي ماڼۍ روښانول و، که يې حربي کارخانې جوړولې، که يې ډاکټران و انجنيران راغوښتل، مقصد يې د قدرت ساتنه او ځانو ته د اسايش برابرول و.

---

[۱] سفر نامه و..... ـ ۳۳۱ـ ۳۳۳ مخونه

امريكايي انجنيرجيويټ د (افغان موټر شركت Afghan Motor Company تاسيسولو په باب په دې ارتباط داسي خبري كوي دی ليكي (Afghan Motor Co) كابل ته د مالونو راوړلو او بيرته هندوستان ته د افغاني صادراتو د لېږلو په نيامت تنظيم سوي و. امير خپلو خلكو ته له دې بابته وينا وكړه او له هغوی څخه يې و غوښتله چي په دغه شركت كي پانګه وا چوي. امير د شركت د ګټو بيانولو په ترڅ كي وړانديز وكړ چي څوک دي ډېرش زره، څوک شل زره روپۍ شركت ته ور كړي. د امير وړانديز د حكم معنا لرله او طبيعي ده خلكو په دغه شركت كي پانګه واچوله. د دې كمپنۍ نوم د شركت د ودانۍ پر سر په دومره غټو تورو وليكل سو، چي له څو ميله واټن څخه به ليدل كېدی. خو د شركت له موټرو څخه بل هيڅ كار وا نه خيستل سو، بې له دې چي د حرم مېرمني او د امير غلام بچه ګان او د هغوی سامانونه له يوه ځايه بل ته و لېږدوي! جيويټ زياتوي: ده امير ته وړانديز وكړ چي له دغو لاريو څخه دي يوه پيښور ته ولېږل سي، چي له هغه ځايهGate value را نقل كړي، ځكه د دغو پرزو له بابته د برېښنا د فابريكې يو مهم كار معطله دئ كه دغه سامانونه د پيل د ګاډيو پر ځاى په موټر كي رانقل سي، درې مياشتي وخت پكښې سپمېږي. دی زياتوي چي دا پلان د عملي كېدو پړاو ته نژدې سوی و، چي يو چا امير ته و ويل چي كه دغه سامان آلات په لارۍ موټر كي را نقل سي، امكان لري د موټر رنګ وتوږل سي! او امير تر نوموړي پلان تېر سو!( Asia مجله ـ د ۱۹۲۰ع كال د جون ګڼه) خو له دې ټولو ملاحظاتو سره سره بيا هم سترګي نسي پټېدلاى، چي د غو محدودو پر مختګونو پر عامه ذهنيت باندي هم اغېزه ښندله او د راتلونكو تنويري فعاليتو لپاره يې زمينه برابروله. د بهرنيو ماهرانو د استخدامولو كار د امير حبيب الله خان (سراج الملة والدين) لخوا پسې تعقيب سو. نوموړي امير په هيواد كي د ځينو مدني پر مختګو لپاره په ذهني لحاظ تر خپل پلار

زيات آماده و. دی د خپلو اسلافو او اخلافو په پرتله تر ټولو زيات بامطالعه امير تېر سوی دئ. امريکايي انجنير A.C.Jewette د ده ذکاوت ستايي او ليکي: (اميرحبيب الله خان... په فارسي، پښتو، عربي، اردو، تورکي او يو څه انګليسي پوهېدی... اميرحبيب الله خان، چي ماليدلی و يو ډېر روښانفکر او مستعد افغان و. دی د پياوړي شخصيت څښتن و او پياوړې حافظه يې وه....په کابل کي استوګن اروپايان او دغه راز افغانان سره له دې چي دی د خپلو لغزشونو له امله غندي، خو پر دې خبره متفق دي، چي دی په خپل هيواد کي د واکمنۍ لپاره په ټوله معنا ډېر ښه شخص و.)[1] اوسکارفون نيندر الماني چي د يو هيئت په مشرۍ کابل ته تللی و (۱۹۱۴ع)، د امير حبيب الله خان په باب د انتقاد پر څنګ ښه نظر هم لري او نوموړی امير د رسا فکر څښتن بولي. ( افغانستان د هند ستره دروازه - ۷۴ مخ).

زموږ د زمانې مورخ ارواښاد فرهنګ پخپل کتاب (افغانستان درپنج قرن اخير) کي د ده په باب داسي وايي (... از نظر دانش شخصی امير باسواد ترين و بامطالعه ترين پادشاه سلسله محمد زايی از عصر اميردوست محمدخان تا به امير امان الله خان به شمول خود امان الله خان بود. اين مطلب را شاهد بيطرفی مثل راجا چندراپرتاب سياستمدار هندی که خود در ادب فارسی مطالعه داشت، تاييد نموده و راجع به اولين ملاقاتش با او در پغمان درسال ۱۹۱۵مي نويسد: امير در ادبيات فارسی يد طولايی داشت وغالبا از آثار نويسندګان بزرګ سلف نقل قول می کرد.)[2]

له دې يادونو څخه مي مراد دادئ، چي اميرحبيب الله خان د خپل پلار په شان، مستبدالرايه پاچا نه و او لکه وړاندي چي مي و ويل

---

[1] جيويټ - An American Engineer in Afghanistan - ۳۲۷، ۳۲۸ مخونه

[2] فرهنګ - ميرمحمدصديق - افغانستان درپنج قرن اخير - دوهم ټوک - ۴۸۹ مخ - ۱۳۷۳ش

په ذهني لحاظ د نوي مدنیت لپاره آما ده سړی و.

په افغانستان کي د دغه وخت د بهرنیو مستخدمینو په باب ما (هوتک) د خپلو څېړنو په ترڅ کي د یوې رسالې په حجم یاداښتونه راغونډ کړي دي، چي دا دئ له درنو لوستونکو سره یې شریکوم او په خپل خیال کي مي دي، چي د امکاناتو په صورت کي یې د یوه مستقل اثر په توګه چاپ کړم. دا یاداښتونه ما(شین سترګي مستخدمین) بللي دي. د (شین سترګي) نوم د کندهار په حوزه کي د پرتګیانو او نورو اروپایانو لپاره کارېږي او ښایي په نورو پښتني سیمو کي هم رواج ولري.

# لومړۍ برخه

## د امیرعبدالرحمان خان د پاچهۍ دوره

## ۱۸۸۰ـ ۱۹۰۱م

### مسیو ژیروم M.Jerom*

دا سړی د فرانسې تبعه او لومړنی اروپايي انجنیر دئ چي د امیرعبدالرحمان خان له خوا استخدام سوی او کابل ته رابلل سوي و. نوموړی د بر ېښنا انجنیر و.[1] دا سړی مورږ د امیرعبدالرحمان له خولې پېژنو. د ملي بیوګرافۍ قاموس په لومړي ټوک کي د سر سالټر پاین د ماموریت د بیان په ترڅ کي د ده یادونه سوې ده او بې له دې، چي نوم یې واخلي لیکي، چي سر سالټر پاین تر ورک سوي فرانسوي انجنیر وروسته لومړنی اروپايي دئ، چي افغانستان ته تللی دئ.[2] په تاج التواریخ (دلاهور، مشهد، تهران په دریو سرو چاپونو او د پېښور چاپ پښتو ژباړه) کي یې نوم په همدې شکل لیکلی او په انګریزي ژباړه کي یې Jerome ثبت کړی دئ. په سراج التواریخ کي د دې سړي نوم

---

*غبار په (افغانستان درمسیرتاریخ ـ۶۴۵مخ)کي دي د (شورم کریتسګر)په نامه راپېژني.

[1] دغه مستخدمین زیاتره د انجنیر او مهندس په نامه یاد سوي دي. دا چي رشتیا به هم پخپل فن کي د دغه راز دګرۍ څښتنان وو، ما ته په دقیقه توګه معلومات نسته. امریکايي انجنیر اې. سي. جیویټA.C.Jewett چي د امیرحبیب الله خان په وخت کي کابل ته رابلل سوی و، پخپلو یاداښتو کي لیکي: (د امیر له فرانسوي اشپز پرته، چي یو آرټیسټ و او د زیاترو اروپایانو په شان یې د میاشتي یو زر هندۍ روپۍ تنخواه وه، نورو ټولو اروپایانو ځانونه انجیران بلل.) دی زیاتوي (د تعجب وړ نه ده، چي د افغانانو په نظر انجنیر یعني ګیج (سربداله) سړی؟ د جیویټ په باب به پر خپل ځای مفصل ورغېږم.)

[2] وګورئ:The Dictionary of National Biography ـ لومړی ټوک ـ۵۷۸ـ۵۷۹ـ مخونه ـ دا کسفورډ یونیورسیټي پریس چاپ.

( شورم کریشګر) دئ هورې لولو: ( و مقارن این حال شورم کریشګر) نام فرانسوي که درفن توپ وتفنګ سازی و غیره آلات حرب مهارت تامه داشت جهت اجرای کار کارخانه بخاری که در این سال به کابل احداث و ماشین های ګوناګون بتوسط مستر مذکور که از حضور مامور کلکته شده و از فرنګستان به خواهش حضرت والا خریده و در کابل رسیده بود وارد پشاور ګردیده چون ملازمت این دولت را اختیار کرده بود مخارج او را محمد اکبرخان بادامی با امر و اجازت حضرت والا کفایت نمود....(سراج التواریخ جلد ۳ صفحه ۲۵۴).

د سراج التواریخ مولف وروسته زیاتوي چي د ۱۸۸۶ع کال د دسمبر پر ۲۹مه له پاریس څخه د نوموړي فرانسوي لیک امیرعبدالرحمان ته ورسید او په هغه کي بې د پنځو تنو لایقو انجنیرانو او دغه راز خپل ورور لپاره افغانستان ته د ور تګ اجازه غوښتې وه. امیر د ده عریضه منظور او په پیښور کي یې د بادامو د خرڅولو مامور محمد اکبرخان ته سپارښتنه وکړه چي دوولس زره انګلیسي پونډه د بانک له لاري پاریس ته د مستر شورم کریشګر لپاره ولیږي څو له هغه څخه کابل ته د خپل سفر لپاره استفاده وکړي. دغه راز یې مستر شورم ته سپارښتنه کړې وه چي له پاریس څخه له ځان سره د طب یو ډاکټر هم کابل ته د امیر لپاره راولي.(سراج التواریخ ۳جلدصفحه۲۹۵) څرنګه چي د دغه فرانسوي مستخدم په باب د تاج التواریخ څرګندوني تر یوې اندازې مشرح بیان دئ، څکه نو غواړم دلته ټوله را نقل کړم. امیر وایي (زه د ماشینو په اهمیت ښه پوه وم خو بهرنیو او کورنیو ستونزو موقع نه راکوله، چي د صنایعولوري ته په بشپړه توګه پام واړوم. په ۱۳۰۲ق کال له خپل پوه او دانشمند اشنا لارډ ډفرین سره، چي په هغه وخت کي یې پرهندوستان حکم چلاوه، دکتني لپاره راولپنډۍ ته تللی وم. په دغه وخت کي یې د مسیو ژیروم په نامه یو فرانسوی مهندس را ته

کېدلو کي دي هغه تجارتي و سياسي سيالۍ او رقابتونه دخېل نه وي، چي هماغه وخت کي د سرو زرو د مرغۍ (هندوستان) پر سر د اروپايي انحصارګرو تر منځ روان وو او خبره يې آن څو واره جګړو ته رسولې وه.

دا يادابنت ما د ۲۰۰۲م کال په اکتوبر کي کښلی و. اوس (فبروري۲۰۰۳م) چي د ستيفن ويلر د کتاب The Ameer Abdur Rahman د لوستني موقع راته برابره سوه او هورې مي د مسيو ژيروم په باب څرګندوني وکتلې، نومي خپل تېر ګومان په يقين بدل سو. ستيفن ويلر ليکي: (که څه هم عبدالرحمان پخپل پايتخت يا د پاچهۍ په کوم بل ځای کي د انګرېزي استازي له هميشنۍ استوګني سره هيڅ کله هم خپل لېږ شانته تمايل نه ؤ ښوولی، خو د هغو اروپايانو له خدمت څخه د استفادې لپاره په خوښۍ سره تيار و، چي دی د ځانونو آمر او استخداموونکی و ګڼي. په دې لړ کي يې... د مسيوژيروم په نامه د برېښنا يو فرانسوی انجنير استخدام کړ. نوموړی د يوه کشميري مسلمان په مشوره، چي هغه هم د امير له مستخدمينو څخه و[1] په کابل کي د وسلو د کارخانې د تاسيس لپاره يوه استادانه طرحه ورکړه... مسيوژيروم په دې شرط د امير خدمت ته حاضر سوی و، چي د ده په کارخانو کي به يې هيڅ کوم انګرېز نه استخدامېږي...) [2]

[1] دغه کشميری مسلمان عبدالسبحان خان نومېدی، چي له امير سره تر نوکرۍ پخوا يې د هند حکومت د سروې په ډيپارټمنټ کي کار کاوه. پخپله ځانګه کي ماهر سړی و او له همدې امله يارقند ته و لېږل سو. د افغان و انګليس د جګړې پر وخت يې هم د نقشه اخيستونکی په توګه کار کاوه. وروسته يې استعفا ورکړه او د امير عبدالرحمان خان خدمت ته حاضر سو. ويل کيږي، چي په دغه وخت کي يې له انګليسانو سره د سختي دښمنۍ مخ پر ايښی و.

علامه حبيبي وايي، چي د جلال آباد شاهي باغ د همدغه عبدالسبحان خان په مهندسۍ په ۱۸۸۵ م کي جوړ سوی دئ، (تاريخي پېښليک - ۲۰۹ مخ)

[2] و ګورئ: Stephen Wheeler د The Ameer Abdur Rahman ليکنه - ۲۱۸، ۲۱۹ مخونه-لندن- ۱۸۹۵ م.

کېدلو کي دي هغه تجارتي و سیاسي سیالی او رقابتونه دخیل نه وي، چي هماغه وخت کي د سرو زرو د مرغۍ (هندوستان) پر سر د اروپایي انحصار ګرو تر منځ روان وو او خبره یې آن څو واره جګړو ته رسولې وه.

دا یادانښت ما د ۲۰۰۲م کال په اکتوبر کي کښلی و. اوس (فبروري۲۰۰۳م) چي د ستیفن ویلر د کتاب The Ameer Abdur Rahman د لوستني موقع راته برابره سوه او هورې مي د مسیو ژیروم په باب څرګندوني وکتلې، نومي خپل تېر ګومان په یقین بدل سو. ستیفن ویلر لیکي: ( که څه هم عبدالرحمان پخپل پایتخت یا د پاچهۍ په کوم بل ځای کي د انګرېزي استازي له همېشنۍ استوګني سره هیڅ کله هم خپل لږ شانته تمایل نه ؤ ښوولی، خو د هغو اروپایانو له خدمت څخه د استفادې لپاره په خوښۍ سره تیار و، چي دی د ځانونو آمر او استخداموونکی و ګڼي. په دې لړ کي یې... د مسیوژیروم په نامه د برېښنا یو فرانسوی انجنیر استخدام کړ. نوموړی د یوه کشمیري مسلمان په مشوره، چي هغه هم د امیر له مستخدمینو څخه و[1] په کابل کي د وسلو د کارخانې د تاسیس لپاره یوه استادانه طرحه ورکړه... مسیوژیروم په دې شرط د امیر خدمت ته حاضر سوی و، چي د ده په کارخانو کي به یې هیڅ کوم انګرېز نه استخدامېږي...) [2]

---

[1] دغه کشمیری مسلمان عبدالسبحان خان نومېدی، چي له امیر سره تر نوکرۍ پخوا یې د هند حکومت د سروې په ډیپارټمنټ کي کار کاوه. پخپله څانګه کي ماهر سړی و او له همدې امله یارقند ته و لېږل سو. د افغان و انګلیس د جګړې پر وخت یې هم د نقشه اخیستونکی په توګه کار کاوه. وروسته یې استعفا ورکړه او د امیر عبدالرحمان خان خدمت ته حاضر سو. ویل کیږي، چي په دغه وخت کي یې له انګلیسانو سره د سختي دښمنۍ مخ پر ایښی و.

علامه حبیبي وایي، چي د جلال آباد شاهي باغ د همدغه عبدالسبحان خان په مهندسۍ په ۱۸۸۵ م کي جوړ سوی دئ، (تاریخي پېښلیک - ۲۰۹ مخ)

[2] و ګورئ: Stephen Wheeler د The Ameer Abdur Rahman لیکنه - ۲۱۸، ۲۱۹ مخونه-لندن- ۱۸۹۵ م.

له دې شخه ښکاري چې په برتانوي هند د دغه انګلیسي ضد انجنیر ترې تم کېدل عادي خبره نه ده او زما مخکنی ګومان پر ځای و.

## سرسالټر پاین[*] Sir Salter pyne

د دغه انګرېزي مهندس د استخدامولو جریان موږ ته په دوه ډوله را رسېدلی دئ. تاج التواریخ د امیر له خولې لیکي، چې د فرانسوي مهندس میسوژیروم تر ترې تم کېدلو وروسته د ده په لاس پېرودل سوي سامانونه په کابل کې کریاب پراته وو. امیر وایي زه د دې سړی نه وم، چې یو کار دې پیل کړم او پر نیمګور دې یې پرېږدم. ځکه مې نو په هندوستان کې خپل سفیر جنرال امیرمحمدخان[1] ته ولیکل، چې د مسیوژیروم پر ځای یو بل مهندس له ترجمان سره را ولېږي. نوموړی همدغه سرسالترپاین، چې په کابل کې په مسټرپاین سره مشهور و، له منشي سلطان محمدخان[2] سره یو ځای کابل ته راولېږل. دوی دواړه د ۱۸۸۷ م کال په اپرېل کې کابل ته راورسېدل.

په سراج التواریخ کې بیا لولو: (و مقارن این حال مستر پاین نام و دوتن معدن شناس چینی و یک تن هندی که به منظوری امنای

---

[*] په افغانستان درپنج قرن اخیر - اول جلد - اول قسمت - ۴۱۲ مخ کې "ساترپاین" راغلی دئ.

[1] علامه حبیبي د دغه افغاني سفیر نوم جنرال میراحمدخان ښوولی دئ. (پښتلیک - ۲۱۱ مخ) په افغانستان درمسیر تاریخ - ۶۸۲ مخ او د انګرېزي تاج التواریخ په ۲۳ مخ کې "امیر احمدخان" راوړی دئ.

[2] سلطان محمد خان اصلاً هندوستانی و. کابل ته تر راتګ د مخه یې په هندوستان کې د افغاني نماینده جنرال امیراحمدخان منشي توب او ترجماني کول. وروسته بیا امیر عبدالرحمان خان خپل میرمنشي و ټاکه. Life of Amir Abdur Rahman. د همدغه سلطان محمد خان په قلم و لیکل سو، چې وروسته یې پارسي ترجمه د تاج التواریخ په نامه لومړی وار له مشهده (۱۹۰۱م)، بیا له بمبیي (۱۹۰۴ م) شخه خپره سوه. پارسي مترجمین یې غلام مرتضی خان قندهاری او حسین علی شیرازي دي. د تاج التواریخ پښتو ژباړه د ښاغلي عبدالقیوم زاهد "مشواني" لخوا سرته رسېدلې او د دانش کتابتون په همت په ۲۰۰۱ م کال چاپ سوې ده.

گورنمنت عالیه هند برای لازمت دولت علیه افغانستان به خواهش حضرت والا شرف انتخاب یافته... در روز سه شنبه پنجم: جمادی الثانی محمداکبرخان مامور فروش بادام و مقیم شهر پشاور را فرمان شد... که مصارف زاد و راحله راه آنها را از آنجا تا کابل بدهد...) (سراج التواریخ ۳جلد ۲۹۷ صفحه) د سراج التواریخ پورتنی بیان د ۱۳۰۴ه ق د حوادثو په ترخ کي راغلی دئ دا کال له ۱۸۸۷ع سره سمون خوري. انگلیسي منابع بیا په دې باب بل راز بیان لري. د دغو منابعو له مخي امیرعبدالرحمان خان په ۱۸۸۷م کال له یوه انگرېز مهندس سرتوماس مارتین (۱۸۵۰ - ۱۹۰۶ م) سره په کابل کي د ځینو صنعتي کارو په باب موافقه وکړه او نوموړي مهندس خپل استازی سرسالتر پاین کابل ته ولېږی. سالتر پاین لومړنی انگرېز دئ.چي د افغان و انگلیس تر جګړې وروسته په کابل کي استوګن سو.[1] دا موافقه به غالبه په هندوستان کي د افغاني استازي جنرال امیراحمد خان لخوا سر ته رسېدلې وي او د تاج التواریخ په بیان کي به هم مطلب همدا خبره وي.

سالټر پاین کابل ته تر رسېدلو وروسته د مسیوژیروم لخوا رانیول سوي کار خانې او ماشینونه سره تنظیم کړل او په کار یې واچول. په هغو کي د ترکاڼۍ، برمه کارۍ، ولډنگ کارۍ، ارې و رندې دستگاوي شاملي وې. د دې پر څنگ یې د سر توماس مارتین د شرکت په مرسته یوه جبه خانه، یوه ضرابخانه (د سکو وهلو دستگاه) او ځو نوري دستگاوي او ورکشاپونه جوړ کړل. لکه وړاندي چي مو هم یادونه وکړه، امیر د کابل سیند پر غاړه د صنعتي کارخانجاتو لپاره یوه ټوټه ځمکه تخصیص کړه او د "علم گنج" نوم یې پر کښېښوو. دا ځمکه دننني

---

[1] و گورئ: ډکشنري آف نېشنل بیوگرافي - اول ټوک - ۵۷۸ مخ - اکسفورډ. سرتوماس مارتین د Under The absolute Amir د مولف فرانک مارتین مشر ورور و، چي وروسته به پر خپل ځای پر و رغېږو.



د کابل ماشینخانه

کابل د ابن سینا روغتون ته مخامخ د رود پر شمالي څنډه واقع ده چي اوس هم د ماشینخانې په نامه یادیږي. مسټر پاین په کابل کي له څو میاشتو استوګني وروسته د کارخانو کار هندي کارګرانو ته پرېښوو او پخپله انګلستان ته په رخصتي ولاړ. دی اوولس میاشتي وروسته بیرته راستون سو. دا وار یې له ځان سره درې تنه نور هم راوستل چي یو یې جان الفرډ ګرې John Alfred Glfred [1]، بل یې مسټر سټیوارټ Mr. Stewart او دریم یې مسټر میډلیټن Mr. Middleton نومېدی.

پر مسټرپاین باندي د کابل هوا ښه نه لګېده او همدا سبب و، چي د خپل استخدام نیمه موده یې له افغانستانه بهر تېره کړه. خوله دې سره سره امیر عبدالرحمان خان د ده له کاره راضي و او لیکي "... علاوه بر احداث نمودن کارخانه جات مسټرپاین بعضی خدمات دیګر هم بمن نموده است..."[2] رشتیا خبره هم دا ده چي سرسالټرپاین د مهندسۍ پر څنګ سیاسي ماموریت هم درلود او له کابله یې د بیا بیا وتلو سبب په ښکاره "د هوا نه لګېدل" بلل سوي خو ما ته داسي ښکاري، چي دې سفرونو به سیاسي انګېزه هم لرله.

سرسالټرپاین د امیر باوري سړي و او کله چي یې غوښتل له برتانوي هند سره د خپل هیواد د پولو پر سر خبري پیل کړي، له همدغه مسټرپاین څه یې د ځینو مسایلو او مراسلو په برخه کي کار اخیستی دئ. امیر له خپل تربور سردار اسحاق خان سره تر جګړې وروسته په کال ۱۸۰۹م کي د هندوستان

---

[1] جان الفرډ ګرې د امیر عبدالرحمان خان جراح و، چي په افغانستان کي یې د خپلي استوګني بیان په یوه پنډ کتاب کي کړی دئ. دا کتاب At the court of the Amir نومیږي او په ۱۹۰۱ م کال له لندنه خپور سوی دئ. علامه حبیبي کابل ته د سټیورټ او مډلیټن راتګ د ۱۸۹۱ م کال په پېښو کي راوړی خو د سرسالټر پاین د راتګ کال یې ۱۸۸۹ م (۱۳۰۷ ق) ښودلی دئ. (د افغانستان تاریخي پېښلیک - لومړی ټوک ۲۱۲-۲۱۳ مخونه. ۱۳۵۳ ش)

[2] سفرنامه و ... ۳۴۸ مخ.

وایسرا ته د یو لیک په ترڅ کي د افغانستان او برتانوي هند تر منځ د پولي له ټاکلو سره تیاری و ښود. لارډ لنسډون Lord Lansdown د امیر په جواب کي ور ته څرګنده کړه چي د لارډ رابرټس Lord Roberts په مشرۍ به یو هیات کابل ته درسي. دا هماغه رابرټس و، چي د غازي محمد ایوب خان په مشرۍ د افغاني لښکر له خوا د کندهار په میوند کي د انګرېزانو تر سختي ماتي وروسته له افغاني مبارزینو څخه د غچ اخیستلو په نیت له یوه لوی لښکر سره پر افغانستان را اوښتی و او افغانانو ته یې د سر و مال درانه تاوانونه رسولي وو. امیر عبدالرحمان خان د دغي مسئلې په باریکۍ ښه پوهېدی، ځکه یې نو غوښتل، چي د لارډ رابرټس د سفارت په لار کي ځنډ و څنډ راولي او د هند له برتانوي مقاماتو سره خپل مسایل د سر مارتیمر دیورنډ پر لاس حل کړي. هندي مقامات د امیر په دغه تعلل پوه سول او امیر ته یې د یوه لیک په ترڅ کي، چي د یوه التیماټوم حیثیت یې درلود، ولیکل: "د هندوستان دولت نه سي کولای د امیر مبهمو وعدو ته انتظار و باسي". امیر سمدلاسه د هند وایسرا ته ولیکل، چي: "مسټر پاین به زما لیک در وړي او ستاسي سره به د دغه سفارت په باب لازم ترتیبات و نیسي" خو مسټر پاین ته یې لارښوونه وکړه چي ورو ورو سفر وکړي او هندو ستان ته ځان په ځنډ و رسوي، ځکه امیر غوښتل و، چي د لارډ رابرټس د خدمت موده مخ پر بشپړېدو وه. امیر عبدالرحمان خان وایي، چي د دغه تدبیر په واسطه مي خپل مقصد تر سره سو ـ لارډ رابرټس انګلستان ته ولاړ او ماسمدلاسه د سرمارټیمر دیورنډ هیات کابل ته و مانه[1].

له دې بیانه مي هدف د ډیورنډ د منحوسي کرښي په باب نظر څرګندول او د دغي بدمرغي پېښي د جریان څېړل نه دي، بلکي مراد مي د امیر او مسټرپاین د ډېرو نزدې اړیکو ښوول دي. په دې کي به څه شک نه وي، چي مسټر پاین ته به همدا ماموریت ټاکل سوی و چي

---

[1] د تفصیل لپاره و ګورئ: سفرنامه ... ۴۴۷ ـ ۴۴۹ مخونه.

د امیر د باور تر جلبولو وروسته د انگریزي مقاماتو د نقشو د عملي کېدو لپاره په اصطلاح مځکه پسته کړي. ده په زیاترو رسمي مراسمو کي برخه اخیستله. امیر به دلاس روغبړ ورسره کاوه. جان الفریډ گري لیکي "امیر عبدالرحمان ته له مزار څخه کابل ته د راستنېدلو پر وخت د هر کلي لپاره مسټرپاین او دوه نور انگلیسي انجنیران تر ښار د باندي کلای قاضی ته ور وتلي وو.[(۱)] دغه راز کله چي د سرمارټیمر دیورنډ هیات کابل ته ورسېد، د امیر د هر کلي پیغام د همدغه سالټر پاین لخوا ور ته و لوستل سو[(۲)].

مسټر پاین ته په کابل کي پر روغتیایي ستونزو سربېره ځیني نور خطرونه هم پیښ سول. کابل ته د ده د دوهم سفر ملگری او د امیرعبدالرحمان خان شخصي جراح جان الفریډ گرې پخپلو یاداښتو کي لیکي چي (کابل ته زموږ تر رسېدلو نزدې دوې اوونۍ وروسته موږ د آس په سپرلۍ د کابل رود پرغاړه گرزېدلو. مسټر پاین تر موږ وړاندي و او کله چي پر یوه موړ(کونج) راتاو سوو، گورو، چي د ده درک نسته. لږ څه وړاندي مو یوږغ تر غوږو سو، چي و مو کتل زموږ بدرگه سپاهي په تاخته ځان رود ته و رساوه او یو څوک یې له سینده راوکیښ)[(۳)] دا سړی مسټر پاین و، چي که د افغان سپاهي مرسته نه وای نو امیر به د خپل یوه دوست انجنیر له خدمته بې برخي سوي وای.

سرسالټرپاین د ۱۸۹۵م کال په مي کي له کابله ولاړ او د مسټر کلیمنس او مسټر والټر مېرمني یې، چي کابل ته د څومیاشتو تفریح لپاره راغلي وې، له ځان سره بوتلې.[(۴)]

---

(۱) جان الفرډ گري ـ At the court of the Amir ـ ۳۵۵مخ ـلندن ـ ۱۹۰۱م.

(۲) ستیفن ویلر ـ The Ameer Abdur Rahman ۲۰۴مخ ـلندن ـ ۱۸۹۵م.

(۳) جان الفرډ گري ـ ۹۰ـ۹۱مخونه.

(۴) ستیفن ویلر ـ The Ameer Abdur Rahman ۲۲۵مخ ـلندن ـ ۱۸۹۵م.

## سر توماس مارتین Sir Thomas Martin

سرتوماس مارتین(۱۸۵۰-۱۹۰۶م) په هندوستان کي د یوه انګلیسي شرکت بنسټ ایښوونکی انګریز مهندس او د افغانستان لپاره جنرال اجنټ(سر استازی) و، چي په ۱۸۵۰م کال د مارچ پر شپږمه د انګلستان د بر منګهم په ښار کي زیږیدلی و. پلار یې پاتریک ویلیام مارتین Patrick William Martin نومیدی او د برمنګهم د څرمنو د صنایعو څښتن و. توماس مارتین تر لومړنیو زده کړو وروسته په برمنګهم کي د والش په انجنیري شرکت کي شامل سو او په ۱۸۷۴م کي د هندوستان د کلکتې په ښار کي د دغه شرکت د یوه برانچ د پرانیستلو لپاره هغه ښار ته ولاړ. هورې یې پخپل نامه یوه څانګه تاسیس کړه چي دغي څانګي بیا په ۱۸۸۹م کال د بنګال د او سپني او پولادو کمپنۍ جوړه کړه. د هندوستان د اور ګاډو د جوړولو زیاتره کارونه د دغي کمپنۍ لخوا سرښته سوي او د بنګال د سوندړو(کتان) د زیاترو کارخانو و دانۍ د همدغي کمپنۍ لخوا جوړي سوي وې.

توماس مارتین د ۱۸۸۷م کال په سرکي د افغانستان له امیر، عبدالرحمان خان سره تر پیژندلو وروسته د نوموړي امیر لخوا په افغانستان کي د ځینو صنعتي تاسیساتو د جوړولو لپاره د نماینده په توګه و ګومارل سو. توماس مارتین د همدې مقصد لپاره سرسالتهر پاین کابل ته ولیږی. پخپله توماس مارتین په افغانستان کي کارنه دی کړی خو د ده د شرکت استازي سرسالتهرپاین د نوموړي شرکت په مرسته یو شمیر کارخانې او ورکشاپونه جوړ کړل، چي همدغو ورکشاپونو د یو شمیر عصري صنایعو د منځ ته راتلو زمینه برابره کړه. توماس مارتین له امیرعبدالرحمان سره د سیاسي مسایلو په برخه کي پر له پسې همکاري کوله او امیر انګلستان ته د خپل زوی سردارنصرالله خان د سفر د سرښتې کار د همدغه توماس مارتین پر غاړه واچاوه او دی یې د سفر د هیات د مشر په توګه وټاکه.

د امیر د زوی سردارنصرالله خان دغه سفر په ۱۸۹۵م کال کي پيښ سو او په انګلستان کي د همدغه کال د مي له څلېرویشتمي څخه د سپتمبر تر دریمي پوري د رسمي مېلمه په توګه پاته سو. په دغه سفر کي که څه هم امیر خپل هدف، یعني له انګلستان سره د مستقیمو دیپلو ماټیکو اړیکو ټینګولو ته و نه رسېد، خو له توماس مارتین سره يې مناسبات د پخوا په شان دوستانه پاته سول. کله چي سردارنصرالله خان له انګلستانه خپل هیواد ته ستنېدی، نوموړي توماس مارتین خپل کشر ورور فرانک مارتین ور سره ملګری کړ. فرانک مارتین په کابل کي د مستر پاین پر ځای د کارخانجاتو عمومي انجنیر و ټاکل سو، چي بیان به يې په وروستیو پاڼو کي ولولئ. توماس مارتین ته د۱۸۹۵کال په اګسټ کي د انګلستان لوی لقبKnight ور کړه سو او په دا بل کال یعني د ۱۸۹۶م کال د اپریل پر نهه ویشتمه مړ سو.[1]

## فرانک. اې. مارتین Frank .a. Martin

دا انګلیسي انجنیر د پاتریک ویلیام مارتین زوی او د سر توماس مارتین کشر ورور و. نوموړی دوه واره کابل ته تللی و. واردواره په ۱۸۸۹م کي کابل ته و رسېد. امیر ورته د ورکشاپو په څنګ کي د استوګني لپاره ځای ورکړ. دوهم وارپه۱۸۹۵م کي د امیر د زوی سردارنصرالله خان سره له لندن څخه د کابل پر لور د سفر ملګری سو. دا چي تر لومړي وار راتګ وروسته څه وخت له کابله ووت، زما سره دقیق معلومات نسته خو له قراینو داسي ښکاري چي له سردارنصرالله خان سره به لندن ته د هغه د سفر پر وخت له کابله وتلی وي. د دغه سفر دبدرګه هیات مشري د ده د مشر ورور سرتوماس مارتین پر غاړه وه او دی به هم غالبًا د هیات غړی و. کابل ته له دوهم وار ورتګ

(1) د تفصیل لپاره و ګورئ: د ډیکشنري آف نېشنل بیو ګرافي ـ لومړی ټوک ـ ۵۷۸ـ ۵۷۹ مخونه ـ د اکسفورډ یونیورسیټي پریس چاپ.

وروسته يې څه د پاسه اته کاله په دغه ښار کې تېر کړي دي. په دې اتو کلونو کې د اميرعبدالرحمان خان د پاچهۍ وروستي شپږ کاله او د اميرحبيب الله (سراج الملةوالدين) د واکمنۍ د سر دوه ياڅه زيات کلونه شامل دي. لکه وړاندې چې و ويل سول فرانک مارتين د اميرعبدالرحمان خان د زوی سردارنصرالله خان سره له انګلستانه د کابل پر لور په ټول سفر کې ملګری و. نوموړي د خپل دغه سفر او په کابل کې د خپلې استوګنې جريانات او مشاهدات په يوه کتاب کې بيان کړي دي، چيUnder the absolute Amir نومېږي او په ۱۹۰۷م کال په لندن کې چاپ سوی دئ.[1]

فرانک مارتين د اميرعبدالرحمان خان لخوا د سرسالتېر پاين پر ځای د کابل د کارخانجاتو مشر انجنير وټاکل سو. د امير په در بار کې د ډېر عزت څښتن و. د امير له کورنۍ او در باريانو سره دومره نږدې و، چې د هغوی په کورنيو مسايلو، شخصي مخالفتو او تربګنيو ښه پوره خبر و. د کابل شاوخوا سيمې يې تر پښو کښلې وې. د عادي خلکو او کوڅو و بازار په حالاتو خبر بدی او دا ټول حوداث يې پخپل کتاب کې بيان کړي دي. د ده کتاب د اميرعبدالرحمان خان د پاچهۍ او د هماغه وخت افغانستان په باب پخپله نوعه کې غالبًا دوهم کتاب و، چې په لندن کې خپور سوی و.( د دغې لړۍ لومړی کتاب به غالبًا د جان الفرد ګرې وي، چې At the court of the Amir نومېږي او په ۱۹۰۱م کال په لندن کې چاپ سوی دئ، چې زه به يې پر خپل ځای در وپېژنم). د فرانک مارتين کتاب د هغه وخت افغانستان په تېره بيا کابل، د امير، دربار او د هغه وخت د اداري سيستم د پېژندلو لپاره تر ټولو مفصل او مستند کتاب دی دا کتاب پر اتلسو څپرکو وېشل سوی او په منځ کې

---

[1] دا کتاب ما(هوتک) په پښتو ترجمه کړی او په جرمني کې د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې په همت په ۲۰۰۴م کال چاپ سوی دئ.



د عبدالرحمان خان دربار ـ په عکس کي سردار حبيب الله خان هم ناست دئ

(د فرانک مارتين رسامي)

ځيني انځورونه او عکسونه هم لري. د کتاب زياتره انځورونه د فرانک مارتين پخپل لاس رسم سوي دي. نوموړي له رسامۍ سره مينه درلوده او پکښې ماهر ښکاري. په پارسي او اردو ژبو يې خبري کولای سوې.

فرانک مارتين د اميرحبيب الله خان د پاچهۍ د دوهم کال په پای يا د دريم په سر کي له کابله ووت او د پېښور له لاري هندوستان ته ستون سو.

## جان الفريډ ګرې[1] John Alfred Gray

دا سړی د اميرعبدالرحمان خان جراح ډاکټر و، چي په ۱۸۸۹م کال د سرسالتړپاين لخوا امير ته ورمعرفي سو. ګرې له مسټرپاين سره په لندن کي وپيژندل او دا هغه وخت و، چي پاين د افغانستان له لنډ سفر څخه ستون سوی او د امير لخوا يې د ځينو ماشين آلاتو د پېرودلو او د انجنيرۍ په کار کي د مرستيالانو او يوه انګليسي جراح د استخدامولو احکام له ځان سره وړي وو. د جان الفريډ ګرې ټول مسلکي ژوند تر دغه ګړيه، چي له مسټرپاين سره معرفي کېدی، په لندن کي تېر سوی و او هورې يې د نقرس ناروغۍ ډېر ناروغان تر علاج لاندي وو. د کابل د امير په دربار کي د ده د استخدامولو يوه انګېزه هم دا وه، چي امير د نقرس په ناروغۍ مبتلا و. په لندن کي د ده استاد ډاکټر لاوډر برنټن Dr.Lauder Brunton نومېدی.

جان الفريډ ګرې کابل ته د لومړي وار راتګ په لار کي د ۱۸۸۸م کال په سپټمبر کي هندوستان ته ورسېد. هورې يې د افغانستان په باب ښه زياته اندازه معلومات تر لاسه کړل او د همدغه کال په مارچ کي يې له مسټرپاين او دوو نورو انګليسي انجنيرانو(ستېوارټ او ميډليټن) سره يو ځای افغاني بګړۍ تر سر تاو کړې، له پېښوره مخ پر کابل رهي

[1] د جان الفريډ ګرې په باب مو معلومات له هغه کتابه راغونډ کړي دي چي د ده په قلم ليکل سوی او په کال۱۹۰۱م له لندنه خپور سوی دئ. دا کتاب At the court of the Amir نومېږي.

سول. د سفر وسایل(افغاني جامې، خیمه،اسان او نور لوازم) ور ته د امیرعبدالرحمان خان د استازي عبدالخالق خان لخوا برابر سوي وو.

د سراج التواریخ مولف هم دې ته ورته بیان لري. دی لیکي: (و هم در این وقت مسترپاین نام انگلیس که خدمت و ملازمت دولت افغانستان را اختیار کرده و از حضور اقدس والا جهت خریدن آلات و ادوات کارخانه بخاری در فرنگستان رفته بود با دوتن انجنیر از مردم انگلیس و داکتر گرې نام و دوازده تن مستری از مسلمانان سکنۀ هند وارد کابل شده...) (سراج التواریخ جلد۳ صفحه۴۸۲) جان الفرېډ ګرې په داسي وخت کي کابل ته ورسېدی چي امیرعبدالرحمان خان د خپل یاغي تر بور سردار اسحاق خان سره د جګړې په نیت ترکستان ته تللی و[1] دی پخپل کتاب کي لیکي (... موږ ته و ویل سوه، چي امیر په ترکستان کي له خپل یاغي تربور سره په جګړه بوخت دئ او د امیر مشر زوی شهزاده حبیب الله به موږ په قصر کي و مني. مقدماتي کتنه مو د خزانې له مشر جان محمد خان سره و سوه. له دې سړي سره مستر پاین له پخوا پېژندل...)[2] ګرې ته د کابل د ماشینخانې په و دانیو کي ځای ور کړه سو او هورې له مسترپاین سره یو ځای اوسېدی. دی وایي (له مسترپاین څخه مي اورېدلي و، چي په کابل کي یو ښاري روغتون سته. له څو ساتونکو سره د دغه روغتون د کتلو لپاره رهي سوم. روغتون تر ارګ د باندي د ښار او شیرپور د عسکري چوڼۍ تر منځ په یو لړ

---

[1] امیر د سردار اسحاق خان د ځپلو په نیت د۱۳۰۶ق کال په صفره کي(۱۸۸۸م) مزار ته ولاړ او د۱۳۰۷ه کال په ذي القعده کي کابل ته راستون سو(پېښلیک ـ ۲۱۰، ۲۱۱مخونه). ده د دغه پښتانه سردار له پلویانو سره دومره قاتلانه رویه غوره کړه، چي ان د انګلستان د عوامو په مجلس کي د Mr. Bradlaugh لخوا په یوه لیک کي د دغو مجازاتو له امله اندېښنه ښوول سوې وه. (و ګورئ: ستیفن ویلر- The Ameer Abdur Rahman ـ۱۵۵مخ لندن ـ۱۸۹۵م).

[2] At the court of the Amir.ـ۳۳ـ۳۴ مخونه. جان محمد خان د ۱۸۸۹م په سپتمبر کي د خیانت په الزام له کاره وایستل سو.(د افغانستان تاریخي پېښلیک ـ ۲۱۲مخ)

حکومتي و دانیو کي واقع و. چونی انګر یزانو پخوا جوړه کړې وه او The Old Mall يې بلله... يو بل روغتون په ارګ کي هم و.)[1] جان الفریډ ګرې په دغه روغتون کي خپل کار په ۱۸۸۹م کي پیل کړ. له ده سره په روغتون کي هندوستاني ډاکټرانو هم د مرستیالانو په توګه کار کاوه. دا ډاکټران، چي دی يې پوه خلک نه ګڼي، تر ده پخوا کابل ته راغلي وو. جان الفریډ په کابل کي تر لنډي مودې کار کولو وروسته د امیر په حکم مزار شریف ته وغوښتل سو او هورې يې د امیر د خاص معالج او د مزار د پوځي روغتون د مشر په توګه کار پیل کړ. امیر ور ته په هغه کور کي د استوګني اجازه ور کړه چي تر ده پخوا يو وخت امیر شیر علیخان ژوند پکښې کاوه او همدلته وفات سو، بیا پخپله امیر عبدالرحمان پکښې اوسېدی او څه موده د سردار اسحاق استوګنځی و.[2] په مزار کي تر ده وړاندي د امیر معالجین دوه تنه طبیبان وو چي يو يې میرزا عبدالرشید نومېدی "دا سړی د افغانانو په پرتله تعلیم یافته ګڼل کېدی او د شپې لخوا به يې امیر ته د پخوانیو پاچهانو کتابونه، سفرنامې، د جغرافیې، تاریخ عمومي معلوماتو هغه کتابونه لوستل، چي په پارسي ژباړل سوي وو"[3].

جان الفریډ ګرې له امیر سره یو ځای کابل ته راستون سو او دلته د امیر او هغه د ملکې خاص معالج و خو په ښاري روغتون کې عامه خلک هم تداوي کول. دی وايي چي " د پسرلي او دوبي په موسمونو کي يې د ورځي سل... سل و دېرش ناروغان کتل او ځیني خو له ډېرو لیرو لیرو فاصلو، ترکستان، کندهار، هرات او کافرستان (نورستان ... م.هـ) څخه ور ته راتلل" [4]. د ده د دغو خدمتونو په بدل کي امیر ور ته د نوروز په جشن کي

---

[1] ر At the court of the Amir ـ ۴۱، ۱۱۵مخونه.

[2] هماغه اثر ـ ۱۵۳ مخ.

[3] هماغه اثر ـ ۱۵۶ مخ.

[4] هماغه اثر ـ ۴۲۹ مخ.

د سرو زرو مډال او پنځه زره روپۍ د انعام په توګه ور کړې.[1]

ګرې په کابل کې د خپلې استوګنې په وخت کې فارسي ژبه یو څه زده کړه او استاد یې د امیر په دربار کې د برتانوي استازي سکرتر منشي امین الله و.[2] دغه راز یې د افغانستان د تاریخ مطالعه هم کړې وه او د ده کتاب له لوستلو څخه سړی پوهېږي، چې په دې برخه کې د انګرېزي لیکوالو او په تېره بیا والتر بیلیو آثار کتلي وو. ده د خپل کتاب په یوه برخه کې د معاصر افغانستان د شاهانو لنډ بیان هم راوړی دئ[3]. جان الفرېډ ګرې په کابل کې تر څه د پاسه دوو کلونو ژوند وروسته لندن ته د واده کولو لپاره د امیر په فرمان او اجازه ولاړ.[4] او تر واده کولو وروسته د ۱۸۹۲ م کال په مارچ کې بیرته کابل ته راستون سو او امیر ته یې د نورو تحفو په څنګ کې دوه د ګولیو توپک او یو ښکاري توپک په سوغات راوړل. دا چې دا ځل یې څومره وخت په کابل کې تېر کړ، ما ته څرګنده نه سوه خو دومره راته معلومه ده چې د امیر عبدالرحمان په ژوند له کابله ووت او د ده خبره "مدنیت ته ستون سو".

جان الفرېډ ګرې ته د رخصتۍ په نیامت د تګ په وخت کې پر څلوېښت زره اته سوه روپیو کلنۍ تنخواه سر بېره اتلس زره انګلیسي پونډ هم ورکړه سول. دا وروستی رقم د امیر له خوا د انعام په توګه ورکول سوی و. دغه راز یې د ده تر جمان ته، چې یحیٰی نومېدی دوه زره روپۍ بخشیش منظور سوی و. ډاکتر ګرې ته له کابل څخه د وتو پر وخت جمعاً شپېته زره و اته سوه انګلیسي روپۍ او یولک شل زره کابلۍ روپۍ حواله سوې او په لاس ور کړه سوې. (سراج التواریخ ۳ جلد...).

---

(1) هماغه اثر – ۲۹۳ مخ.

(2) په دغه وخت کې په کابل کې د انګرېز سفیر کرنیل عطاؤ الله خان و. تر ده وروسته محمد افضل خان ګنډه پور په کابل کې سفیر و ټاکل سو. (تاریخي پېښلیک – ۲۱۱ مخ).

(3) At the court of the Amir – ۱۹۴ . ۱۹۵ مخونه.

(4) د دغه فرمان انګرېزي ژباړه یې د خپل کتاب په ۴۴۹ مخ کې راوړې ده. د فرمان نېټه د ۱۸۹۱ م کال د جون دوهمه ده.



**امیر عبدالرحمٰن خان**

د جان الفرید گري رسامي

## ډاکټر اومېرا Dr. O'Meara

ډاکټر اومېرا[۱] د غاښو ډاکټر او افغانستان ته دوهم انګرېز مستخدم و چې په ۱۸۸۶ م کال کابل ته د دې لپاره را وغوښتل سو، چې امیر عبدالرحمان ته یوه جوړه غاښونه ورتیار کړي. نوموړی ډاکټر څو میاشتې په کابل کې پاته سو او په دغه موده کې یې څو تنه شاګردان وروزل، چې تر ټولو رسېدلی شاګرد یې صوفي عبدالحق نومېدی.

فیض محمد کاتب کابل ته د نوموړي ډاکټر د رسېدلو په باب لیکي: (در روزیکشنبه بیست و سوم ماه ذی قعده داکتر او میرا نام دندانساز که ملازمت دولت افغانستان را اختیار کرده و رهسپار خدمت شده بود وارد پشاور گردیده و میرزا عبدالخالق خان مامور فروش بادام به امر حضرت والاتهیه سفر او را نموده باعزاز و اکرام رهنورد کابل ساخت...) (سراج التواریخ جلد ۳ صفحه ۳۵۳).

ډاکټر او میرا د ۱۸۸۷ م کال په پای کې له کابله هندوستان ته ولاړ او هورې یې د امیر عبدالرحمان د شخصیت، استعداد او ادارې په باب لیکنې وکړې چې امیر یې یادونه پخپل کتاب (تاج التواریخ) کړې ده. د ډاکټر اومېرا په باب د تاج التواریخ تر یادونو په هاخوا ما ډېر څه و نه موندل. ستېفن ویلر د ده په باب لیکي "ډاکټر اومیرا... د غاښو جراح او د خپل مسلکي مهارت په وجه کابل ته بلل سوی و. کابل ته د ده تګ خطر ناک ګڼل کېده خو له دې سره سره دی له کابله په ټرلو تنیو ووت او له خپل سفره ډېر خوشاله او راضي و. د ده په نظر امیر په دولتي چارو ډېر مصروف و او ټوله ورځ به یې له خلکو سره لیدنې کتنې کولې. د ده د غاښو ایستل او نوي غاښونه ور اېښوول په عام دربار کې سر ته ورسېدل ...."

پر مسټر اومېرا باندې د امیر چلند ډېره اغېزه کړې وه. دی وایي کله

---

[۱] د تاج التواریخ د پارسي ترجمې په ټولو چاپو او دغه راز په پښتو ژباړه کې دا نوم مسټر او میارا دئ چې زما په فکر سمه لوستنه نه ده.

چي امیر په پغمان کي د دوبي له استوګنځي څخه کابل ته راستنېدی، له هر چا ان له یوې بوډۍ ښځي څخه یې د عریضي اخیستلو لپاره آس و دراوه." ستیفن ویلر زیاتوي، چي "تر دغي پېښي څلوېښت کاله وړاندي یوه امریکا یي ګرځندوی مسټر هارلن Mr. Harlon امیر دوست محمد خان د همداسي یوه عمل په وخت کي لیدلی و." (۱)

ډاکټر جان الفرید ګري یې پخپل کتاب کي د امیر له خولې یوه لنډه شانته یادونه داسي کوي "یو سهار امیر حال را وکړ، چي د ایبکو حاکم په خوله کي د ګولۍ واری خوړلی دئ او معاینې ته یې باید ورسم. د ناروغ تر کتلو او د ټپ تر پاکولو وروسته مي امیر ته پیشنهاد وکړ، چي زخمي ته دي د سرو زرو تالو جوړ سي. امیر و ویل په کابل کي یو څوک سته، چي د انګرېز غاښ جوړوونکي ډاکټر اومیرا تر لاس لاندي روزل سوی دئ. دی به ور ته دغه راز تالو جوړ کړي او که لازمه سوه مصنوعي غاښونه به ور کښېږدي" (۲) د امیر مراد هماغه صوفي عبدالحق و، چي وړاندي یې یادونه وسوه.

## کپتان ګریسباخ Captain Griesbach

دغه انګرېز پوځي، چي په کابل کي د امیر لخوا د جیولوجیسټ په نامه استخدام سوی و، په سراج التواریخ کي یې نوم "سی ال کریس ماخ" لیکل سوی دئ هورې لولو: "و درخلال این احوال عریضه سی ال کریس ماخ، معدن شناس انګلیس به شرف مطالعه حضرت والا پیوسته چون اقتضای ملازمت و ادعای خدمت دولت افغانستان را کرده بود، عرضش پذیرفته ګشته در روز پانزدهم ماه ربیع الثانی فرمان طلب بنام او صادر شد..." (سراج التواریخ جلد ۳ صفحه ۳،۸۷) دا مطلب د ۱۳۰۵ ق کال د حوادثو په لړ کي راغلی دئ او د دې کال یوه برخه په ۱۸۸۷ ع کي

---

(۱) ستیفن ویلر ــ The Ameer Abdur Rahman ــ ۲۲۰ مخ. ده کابل ته د ډاکټر اومیرا سفر په ۱۸۸۷ م کي بللی دئ.

(۲) جان الفرید ګري ــ At the Court of the Amir ــ ۳۴۷ مخ.

راځي. د جان الفريډ ګرې له خولې هم نوموړی پيژنو. دی ليکي "په مزار شريف کي له امير عبدالرحمان خان سره د لومړي وار پيژندګلوۍ او د هغه د نقرس ناروغۍ د معاينه کولو پر وخت امير ته څيرمه يو بل اروپايي ناست و، چي کپتان ګريسباخ Captain C. L. Griesbach نوميدی. ما واوريدله چي دغه ښاغلي له امير سره د جيولوجيسټ په توګه تقريباً دوه کاله تير کړي وو." دی زياتوي "د امير تر بشپړي معاينې وروسته زه او دغه کپتان ګريسباخ يو ځای له درباره راووتو او د کپتان کور ته ولاړو او د شپې ډوډۍ مو سره و خوړه. کپتان را ته و ويل، چي له امير سره د پاته کيدلو خيال نه لرې او غواړي هند ته ستون سې او د بر تانوي حکومت تر بيرغ لاندي خدمت ته دوام ورکړي."(۱) د جان الفريډ له وينا داسي ښکاري چي دغه شخص په اصل کي پوځي سړی و او دا چي امير ته څرنګه د جيولوجيسټ په نامه ور پيژندل سوی و، ما ته پوره معلومات نسته. دومره ويلای سم چي دغه په اصطلاح انجنيرانو زياتره سياسي او پوځي ماموريتونه درلودل.

کپتان ګريسباخ په دغه شپه جان الفريډ ته د امير عبدالرحمان خان د شخصيت، په ترکستان کي د ژوند او د سردار اسحاق خان له پلويانو سره د امير د وحشتناک سلوک په باب اوږدې کيسې وکړې. جان وايي "مزار ته زما تر رسيدلو يو دوې اونۍ وروسته کپتان ګريسباخ له يوه بل هندوستاني ترجمان سره هند ته ستون سو."(۲)

کپتان ګريسباخ په کابل کي له خپلي وظيفې څخه ناراض ښکاريدی. ده جان الفريډ ته ويلي و "څرنګه د ده د کارونو مخه نيول کيده، څرنګه ده ته هر ګټور کار ناممکنه و او څرنګه په ده پسې اوازې خپرې وې، چي له ده سره د ياداښت کتابچه سته او هر ارزښتناک مينرال چي پيدا کړي،

---

(۱) At the Court of the Amir. ۱۶۰ مخ.

(۲) هماغه اثر ـ ۱۶۱ مخ.

تر امیر د مخه یې رپوټ بر تانوي حکومت ته ور کوي." (۱)

ګرې وایي ، دغه اوازې ده هم اوریدلې وې. ښه ، دا خو د یوه انګریز د خولې بیان دئ او لیري نه ده، چې دې ټولو خبرو دي حقیقت هم درلود موږ ته د هیواد د کانونو د موندلو او را ایستلو په برخه کي د امیر خیالات معلوم دي. دی په دې برخه کي د بهرنیانو په ارادو او نیتو ښه پوره پوه و. د هغوی استعماري مقاصد ور ته ثرګند وو. دی که څه هم خپلي د زړه خبري په بشپړ تفصیل سره نه کوي او خپلو اخلاقو ته په ګومه (کنایه) نصیحت کوي. دی وایي "به پسرها و اخلاف خود باکمال تاکید نصیحت مي نمایم که انحصار معدنیات خود را به هیچ خارجي ندهند و نگذارند در معادن آنها کمپانیهای خارجی مداخله نمایند والا دچار اشکالات عدیده شده بهانه بدست خارجی خواهند داد که در امورات مملکت... مداخله نمایند، به خیال من صحیح نیست که این مطلب را مشروحاً بیان نمایم... اشاره ازمن دراین فقره کافی باشد که پسرها و اخلاف مرامتنبه سازد که ابداً خود را با ملل خارج در کارهای پر پیچ و خم نیندازند، همین که باید از مردمان خارج از دادن امتیازات اجتناب نمایند، بلکه مخصوصاً اهل فرنګستان را نګذارند که در مملکت آنها دایماً زیست نمایند..."(۲) له دې نقل قول څخه به درنو لوستونکو ته ثرګنده سوې وي، چې امیر د معدنیاتو په برخه کي پر بهرنیانو باندي شکمن و او همدا وجه وه، چې کپتان ګریسباخ په خلاص مټ د افغانستان د معدنیاتو سروې ته نه پرېښوول کېدلی.

کپتان ګریسباخ په هغه ورځ له امیر سره ناست و، چې د هراتی پلټني یو سرتېري پر امیر باندي د توپک ډز وکړ. په دغه پېښه کي امیر بچ سو او ګولۍ په یوه غلام بچه کي و نښتله (۳) دا پېښه په ۱۸۸۸ م کي

---

(۱) هماغه اثر ـ ۴۳۱ مخ.

(۲) سفرنامه ....ـ ۳۷۸ مخ.

(۳) At the court of the Amir ـ ۲۳۶ مخ.

واقع سوې وه، چي موږ د امیر له خولې هم په خبر یو. جان الفرید د کپتان ګریسباځ له خولې وایي، په دغه شېبه کي، چي د ګولۍ واري کېږي امیر په تصادفي توګه د یو شي د را اخیستلو لپاره مځکي ته کړېږي، ګولۍ ور څخه خطا کېږي او په غلام بچه کي نښلي. د دغه غلام بچه تداوي د جان الفریدګرې لخوا تر پېښي دوولس میاشتي وروسته وسوه.(۱) امیر دې پېښي ته خرافاتي رنګ ورکوي. دی وایي "... درماه ربیع الثاني ۱۳۰۶ ق روزی مشغول دیدن عساکر مقیم مزارشریف بودم. در این بین یکی از سربازها ګلوله از تفنګ خود به طرف من خالی نمود، چیزی نمانده بود که کشته شوم و اینکه جان بسلامت بدر بردم سری است که نه خودم و نه آنها یی که حاضر بودند توانستیم بفهمیم، چرا که فهمیدن این معنٰی ناممکن است که چطور ګلوله تفنګ وسط صندلی که روی آن نشسته بودم سوراخ نموده است و بعوض اینکه از بدن من بګذرد به غلام بچه که عقب سر من ایستاده خورده او را سخت مجروح نموده...". امیر د دې پېښې علت له قضا و قدر او د اجل له موعد سره تړي، چي د اسلامي عقیدې له مخي یو حقیقت دئ خو وروسته بیا د خرافاتو لمن ټینګوي او اصلي علت دا سي بیانوي: "... در زمانی که طفل بودم به من ګفتند شخص مقدسی طلسمی دارد که به کاغذ مي نویسد، هر کس باخود نګاه بدارد هیچ اسلحه ناری یا اسلحه دیګر به او کار نمی کند. اول اثر این طلسم را معتقد نبودم لهذا طلسم مذکور را به ګردن ګوسفندی بسته امتحان کردم، اګر چه خیلی سعی کردم حیوان مذکور را بګلوله بزنم، ولی هیچ ګلوله به او صدمه نزد. به این دلیل ناطق به طلسم مذکور معتقد شده به بازوی راست خودم بسته از طفولیت تا کنون همراه دارم. اعتقادم این است اسباب حفاظت من همین طلسم شده است"(۲).

(۱) ستیفن ویلر ـ The Ameer Abdur Rahman ـ ۱۵۶ مخ.

(۲) سفرنامه... ـ ۲۸۴ ـ ۲۸۵ مخونه.

کپتان گریسباخ تر خپل ناکام ماموریت وروسته غالباً د ۱۸۸۸ م په پای کې له افغانستانه و وت او پر ځای یې ارتر کولینز د جیولوجیست په توګه استخدام سو. ستفن ویلر لیکي، چي په ۱۸۹۵ م کال کي کپتان ګریسباخ د هند د جیولوجیکي سروې د مشر په توګه کار کاوه[۱].

د Historical & Political Gazetteer of Afghanistan دانشمند امریکایي لیکوال لودویک ادمکLudwig Adamac د خپل دغه ارزښتناک ضخیم اثر د پنځم ټوک، چي کندهار او جنوب ـ مرکزي افغانستان ته وقف سوی دئ، په سریزه کي د خپلو نورو منابعو او ماخذونو د یادوني په ترڅ کي د G.L. Griesbach نوم اخلي او د ده له Geological Survey of India نومي رپوټ څخه د کندهار د جیولوجیکي څېړني په برخه کي ښه ډېره استفاده کوي. دغه رپوټ د ۱۸۸۰ع کال په جون کي د نوموړي ګریسباخ لخوا برابر سوی و[۲].

ګریسباخ ته د انګلستان د حکومت لخوا د Esquire لقب ورکړه سوی و. دا لقب تر Knight لږ څه ټیټ لقب دئ.

## ارتر کولینز Arthur Collins, F.G.S.

د امیرعبدالرحمان خان په تاج التواریخ کي د دغه سړي یادونه نسته او زه یې د جان الفرید ګرې د سفر نامې At the court of the Amir له مخي درپېژنم. ارتر کولینز د کپتان ګریسباخ وروسته د امیر لخوا د جیولوجیسټ په توګه استخدام سوی او په اصل کي د انګلستان د کورنیو چارو د دفتر لخوا د امیر استازي ته وروپېژندل سوی و[×]

---

[۱] ستیفن ویلر ـ ۲۲۲ مخ.

[۲] وګورئ: لودویک ادمک Historical & Political Gazetter of Afghanistan ـ پنځم ټوک ـ د سریزي ۵ ... XIX ... XVI مخونه ـ ۱۹۸۰ع.

[×] له دې څخه ښوک داسي حدس هم وهلای سي چي د دې شخص پر غاړه به یوازي د کانونو په برخه کي د څېړني کار پروت نه و.

جان الفریډګرې لیکي(تر ۱۸۹۲کال وروسته کله چې مسټر پاین له انګلستانه کابل ته راستنېدی، همدغه ارترکولینز یې له ځان سره راووست، چې د جیولوجیسټ په توګه یې خدمت ته شامل کړي. له مسټر کولینز سره دوه نور مرستیالان هم راغلي وو، چې یو یې د کانو مرستیال او بل یې ډبره پېژندونکی (Lapidary) و[1] دا دوهم ډېره موده په کابل کې پاته نه سو، ځکه څرګنده سوه، چې محلي کار کوونکي تر ده پخپل کار کې ډېر اغېزمن دي. جان الفریډګرې چې له مزار شریف څخه کابل ته راستنېدلی، پر لاري یې د بامیانو د بتانو ننداره کړې وه. دی پخپل کتاب کې لیکي(د غټ بت په سر کې د ګچو د نقاشۍ پیکه نښانې سته او مسټر کولینز جیولوجیسټ د هغو د عکاسۍ سرښته وکړه. ماته څرګنده نه سوه چې دا نقاشي چا کړي وي. د غره پر مخ د بتانو څنګ ته په ډبره کې کیندل سوي غارونه هم سته چې ځیني یې په ښکلي ډول کیندل سوي دي). ګرې زیاتوي، چې کولینز دغه غارونه کتلي او عقیده لري چې(دا په سخته ډبره کې کیندل سوي او د راښه معدني قیر استر ورکول سوی دئ)[2]د ګرې له لیکني څخه ښکاري، چې کولینز په دې برخه کې لیکني کړي دي ځکه ګرې یې نقل اخیستی او په قوسینو کې یې راوړی دئ. ارترکولینز په کابل کې د جان الفریډ ګرې د استوګې په وخت کې موجود او د جان الفریډ اشنا و. له هغه سره به تل له ښاره بهر په چکر واته. ګرې وایي(د ارتر کارونه کپتان ګریسباخ ته ورته وو. تل به د یوه ګارډ لخوا سخت تعقیبېدی... ده خو میاشتي وروسته د ځینو جیولوجیکي ساختمانو په زړه پوري عکسونه واخیستل خو سمدلاسه رپوټ ور کړه سو چې نوی جیولوجیسټ یو سیاسي ایجنټ دئ. دی کابل ته راوبلل سو او د کپتان ګریسباخ

---

[1] At the court of the Amir ـ ۴۷۵مخ.

[2] هماغه اثر ـ ۱۴۴مخ.

په شان خو میاشتي بېکاره ناست و. په پای کي ده هم استعفا ور کړه.) (۱)
مسټر کولینز د شطرنج شوقي و او له امیر سره يې لوبه کړې وه خو بايللې يې وه. ګرې د کولینز له خولې ليکي(امیر کولای سي د لندن په دوهمه درجه شطرنج بازانو کي ښه ځای ولري) (۲) کولینز ښه لامبوزن هم و او کله چي له جان الفرېډ ګرې سره مخ پر هندوستان روان و، ډکې ته نزدې يې د کابل په څپاند سیند کي لامبو وکړه.

## مسټر سټيوارټ Stewart

مسټر سټيوارټ د توپ جوړولو تجربه کار مهندس او د انګلستان تبعه و چي د امیرعبدالرحمان خان لخوا په کابل کي د دغو چارو د پر مخ بیولو لپاره استخدام سوی و. دی په ۱۸۸۹م کال له مسټر پاین سره له انګلستانه کابل ته راغی. په عمر پوخ سړی و.(کابل ته د مسټر پاین دا دوهم وار راتګ و. لومړی وار په ۱۸۸۷م کي کابل ته تللی و او فقط څو میاشتي يې تېري کړي وې.) د مسټر سټيوارټ د ژوند په باب مي نور څه تر لاسه نه کړل. امیرعبدالرحمان خان يې په تاج التواريخ کي يادونه کړې او له کاره يې ډېر رضايت ښوولی دئ. ده ليکلي(علاوه براينکه مستر ستيورت شخص خیلی قابل و تجربه کار بود و خیلی زحمتکش و قلباً مایل به کار و نهایت ظریف و خوشطبع بود، اګرچه آدم معمری بود ولی در کار خود خیلی چابک و چالاک رفتار میکرد.) (۳)

---

(۱) هماغه اثر - ۴۳۲مخ.
(۲) هماغه اثر - ۴۸۷مخ.
(۳) سفر نامه .... - ۳۴۷مخ.

## مسټر میکډرماټ^(۱) McDermat.

مسټر میکډرماټ انګلیسي د کابل په دولتي ضرابخانه (د سکو وهلو کارخانه) کي کار کاوه. تر ده وړاندي د افغانستان مسکوکات په لرغوني توګه په لاس تویېدل. په ۱۸۹۶م کال کي چي امیر عبدالرحمان خان ته د (ضیاءالملة والدین) لقب ورکړه سو او په سکو کي د دغه لقب د ثبتولو تجویز ونیول سو، امیر د همدغه میکډرماټ انګلیس په وسیله د کابل په ضرابخانه کي په همدغه لقب سکې و وهلې. د هغه وخت سکې یوه شاهي، دوې شاهۍ، روپۍ، غران او تنګه وې. شاهۍ او دوې شاهیزي د مسو وې او روپۍ، غران او تنګې د سپینو زرو وې.^(۲) میکډرماټ ډېر کابلي او هندي شاګردان و روزل، چي تر ده وروسته یې د ضرابخانې چاري په ښه توګه پر مخ بېولې.

اې. سي. جیویټ امریکایي، چي د امیرحبیب الله خان (سراج الملة والدین) په پاچهي کي د جبل السراج د بریښنا د تاسیساتو انجینیر ؤ د افغاني سکو اضعاف او اجزاء داسي ښوولي دي:

یوه روپۍ = ۲ غرانه = ۳ عباسۍ = ۶ سناره = ۱۲ شاهۍ.^(۳)

---

(۱) د هغو کسانو پر نومونو باندي سل په سلو کي باوري نه یم چي له تاج التواریخ څخه رانقل سوي دي. ما تر وسه وسه کوښښ کړی دئ چي د نومونو سمه بڼه پیدا کړم. په ځینو برخو کي نه یم بریالی سوی. (هوتک)

(۲) سفر نامه و ... ۳۴۴مخ. ( د شاهۍ تلفظ ما په وړکینه په کندهار کي "ښاهۍ" اوریدلی دئ.)

(۳) An American Engineer in Afghanistan. ۳۰۶مخ.

## مسټر میډلټن Middleton[(۱)]

دغه انګرېز انجنیر د امیرعبدالرحمان په پاچهي کي استخدام سو او د هنري مارتیني ټوپکو لپاره یې د کارتوس جوړولو کارخانه تاسیس کړه او په دې برخه کي یې ښه تکړه افغاني شاګردان وروزل. په دغه کارخانه کي د ورځي دوولس زره کارتوس تولیدېدلای سول.[(۲)] علامه حبیبي د دغي کارخانې جوړېدل د ۱۸۹۱م کال په پېښنو کي راوړي او د جوړېدلو میاشت یې جنوري بولي.[(۳)] له مسټر میډلیټن سره سټیوارټ نومی انجنیر هم په کابل کي مقرر سوی و. دی هم انګرېز و. زما د همدې لیکني په ۲۵، ۳۱او ۴۲ مخونو کي د سټیوارټ لنډه شاني یادونه سته.

مسټر میډلیټن په کابل کي د جان الفرېډ ګرې د استوګني په وخت کي حاضر و. ګرې لیکي چي "زما او مسټر پاین د خوني څنګ ته زموږ دوو نورو ملګرو سټیوارټ او میډلیټن اړولي وه.. او زموږ زیاتره ناسته ولاړه له همدوی سره وه.." ګرې، چي په انګلستان کي تر واده کولو وروسته بیرته کابل ته ستون سو (مارچ ۱۸۹۲م) میډلټن او سټیوارټ دواړه له خدمته رخصت سوي او پر ځای یې دوه سکاټلینډیان ټاکل سوي وو.[(۴)]

د سنایډر ټوپکو کارتوس د مسټر اډوارډز په لارښوونه جوړېدل[(۵)] دی د انګلستان تبعه و. تر تاج التواریخ په هاخوا مي د ده په باب بل ځای څه نه دي لوستي.

---

[(۱)] د تاج التواریخ په انګرېزي چاپ کي دغه نوم په همدې شکل راغلی دئ. خو د میډلیټن په نامه یو بل انګرېز انجنیر هم په دغه دوره کي په کابل کي کار کاوه چي د نامه انګرېزي لیکنه یې Myddleton وه. دی د کانو مهندس و او د جلال آباد د یاقوتو او د غوربند د سربو په معدنو کي یې کار کاوه. (وګورئ: سفرنامه...۳۷۸مخ دغه میډلیټن له مسټر پاین سره په ۱۸۸۹م کال له انګلستانه کابل ته راغلی و.

[(۲)] سفر نامه و ....۳۴۴مخ.

[(۳)] حبیبي ـ د افغانستان تاریخي پېښلیک ـ ۲۱۳مخ.

[(۴)] وګورئ: At the court of tha Amir ـ۳۳ـ ۴۲۹ـ ۴۵۹ مخونه.

[(۵)] سفرنامه....۳۴۵مخ. سنایډر ټوپکو ته یې په افغانستان کي "بغل پر" ټوپک ویل.

## تارنټن Thoronton [1]

د انګرېزي مستخدمینو په لړکي د څرمنو د کارخانې د کارکوونکو له جملې څخه د دغه شخص یادونه په افغاني او انګلیسي نشراتو کي راغلې ده. په پارسي او پښتو تاج التواریخ کي يې نوم د "تارتن" په بڼه راغلی دی. د علامه حبیبي په یاداښتوکي "نارنتن" لیکل سوی دئ

چي غالباً به چاپي تېروتنه وي او د څرمنو د کارخانې جوړېدل يې د ۱۸۹۲م کال (۱۳۱۰ق) په پېښو کي راوړي دي.[2] د مسټر ټارنټن راتګ کابل ته هم په همدغه کال کي بللای سو ځکه په دغه کال مسټر پاین له انګلستانه دوه تنه انګرېزي انجنیران له ځان سره راوستلي وو چي یو يې د باغ (Tanner) و.[3] زما په اټکل به دغه سړی غالباً زموږ د بحث ټارنټن و.

تارنټن د امیر عبدالرحمان خان لخوا د څرمني جوړولو د کارخانې لپاره استخدام سوی و. په د باغۍ (د څرمني پخولو صنعت) کي يې کارګران روزلي وو. مشهور شاګرد يې غلام حیدر نومېدی چي د کابل د دباغانو مشر و.

په دباغي صنعت کي امیر عبدالرحمان خان له ایرانه هم دوه تنه استخدام کړي وو او ده پخپله دغه فن په روسیه کي د خپلي استوګني یا تبعید په کلونو کي زده کړی و. امیر د یو بل انګرېز نوم هم یادوي چي د غوايي د څرمني جوړولو ماهر و او په شاګردانو کي يې "عظیم" بڼه پوره نوم ویوست. د دغه سړي نوم په تاج التواریخ کي " باسکر" بلل

---

[1] د Dictionary of National Biography په ۵۷۹ مخ کي د Edward Thoronton په نامه د یوه مهندس یادونه سته خو هغه بیا د تعمیراتو انجنیر ښوول سوی دی او وايي چي "د هندوستان په بیلابیلو برخو په تېره بیا کلکته کي يې ستري ماڼۍ او مهمي ودانۍ جوړي کړي دي."

[2] د افغانستان تاریخي پېښلیک. ۲۱۴مخ

[3] د باغ. څرمن پخوونکي یا څرمن رنګوونکي ته وايي. کسب ته يې د باغت ویل کېږي.

سوی دی چي زه یې د نامه پر سموالي شکمن یم.[1]

## کمیران Cameron

دا انګریز انجینر د توپک جوړولو ماهرو، چي امیر عبدالرحمان خان د هندوستان په کارخانو کي ورسره پېژندلي وه او ورپسې یې په کابل کي د توپک جوړولو په کارخانه کي د مستخدم په توګه ټاکلی و. ده د هنري مارتیني توپکو د جوړولو کارخانه په کابل کي تاسیس کړه او دغه راز یې افغاني کار ګرانو ته دغه فن وروښوو.[2] په دغه کارخانه کي د ورځي لس توپکه جوړېدلای سول. د مسټر کمیران له کاره امیر ډېر رضاییت ښوولی دی. دی پخپل کتاب تاج التواریخ کي لیکي "مسټر کمیران... د توپونو، ټوپکونو او نورو څیزونو د جوړولو لپاره تر ټولو پوه کارګرو، چي ما ګومارلی و. د هغه له کار څخه زما دولت ډېره ګټه واخیستله.. د جنګي وسایلو د جوړولو او ازمویلو په اړه یې ماته ځانګړي یادښتونه او مجلې راکړې، څرنګه چي مو دغه کتابونه له بهرنیو دوکانونو څخه نه شو ترلاسه کولای، نو دغه یادښت مي خپل سفیر کرنیل ولی احمدخان ته هندوستان ته ور ولېږه او هغه ته مي لارښوونه وکړه، چي دغه کتابونه د هندوستان له حکومت څخه تر لاسه کړي... له هغو څخه ځیني په فارسي ژباړل شوي دي.[3] مسټر کمیران چي افغانستان ته د تلو په لاره کي پېښور ته رسېدلی و، سخت ناروغ سوی و ځکه نو څه موده هورې تم سو او تر روغېدلو وروسته کابل ته ولاړ.

(سراج التواریخ ـ جلد۳ ـ صفحه ۶۶۸)

---

[1] سفرنامه.... ۳۵۱مخ.

[2] سفرنامه.... ۳۴۵مخ.

[3] پښتو تاج التواریخ ـ ۲۶۳مخ. د ولی احمدخان نوم په پښتو ژباړه کي ولی محمد خان راغلی دی. ما د علامه حبیبي د لیکنو له مخي ولی احمدخان وکیښ. کرنیل ولی احمد خان د خپل پلار جنرال امیراحمدخان تر مړیني وروسته په ۱۸۸۹م کال د هغه پر ځای په کلکته کي د افغانستان د سفیر په توګه وټاکل سو. د ده پرځای بیا غلام رسول خان په ۱۸۹۱م کي مقرر سو. (وګوری: د افغانستان تاریخي پېښلیک ـ ۲۱۱. ۲۱۳ مخونه).

## مسټر براون Mr. Brown

مسټر براون د برېښنا انجنیر او د انګلستان تبعه و چي په ۱۸۹۳ میلادي (۱۳۱۰ق) کال کابل ته د امیر عبدالرحمان خان د مستخدم په توګه راغلی و. ده هغو کارو ته انکشاف ورکړ چي تر ده وړاندي د الکتریکي څراغونو او تیلفون په برخه کي د هندي او کابلي کارګرانو لخوا سرته رسېدلي و.[1]

## مېرمن ډالي Mrs. Daly

دا مېرمن یوه انګلیسۍ ډاکټره وه، چي د امیرعبدالرحمان خان په امارت کي يې د بهرنۍ مستخدمي په توګه کار کاوه. دا د امیر د حرم د مېرمنو ډاکټره هم وه او دغه راز يې په کابل کي له استوګنو اروپایانو سره چي تقریباً ټول انګرېزان وو، د ناروغۍ په وخت کي د امیر په اجازه مرسته کوله. د دغي مېرمني په باب زما معلومات د فرانک مارټین پر لیکنو بنا دي. په نورو آثارو کي يې زه پر نامه نه یم پېښ سوی.[2] فرانک مارټین وايي، یو وخت پرده باندي د یوه افغان کارګر لخوا ناڅاپي برید وسو او د او سپني د یوې میلې وار يې پر وکړ. فرانک له مرګه بچ سو او په علاج کي يې دغي مېرمن ډالي ډېر زیار وکیښ.

مېرمن ډالي د امیرعبدالرحمان خان له ګراني ماندینې ملکې سلطانې (د شهزاده محمد عمر مور) سره دوستانه اړیکي درلودل. د امیر تر مړیني وروسته کله چي ملکه سلطانه د امیر حبیب الله خان پاچهۍ ته د احتمالي خطر د مخنیوي له امله د ارګ له حرمسرایه په زور و ایستل سوه او په ګلستان سرای کي خپلي ماڼۍ ته ولاړه، پر مېرمن ډالي باندي هم حکم وسو، چي له دې وروسته به له ملکې سلطانې سره نور اړیکي نه

---

[1] سفرنامه.... ۳۴۳مخ.

[2] و ګورئ: Under the abslute Amir. ۱۳۰، ۱۸۲، ۱۸۵ مخونه. د فرانک مارټین په باب دي د همدې لیکني نهه ویشتم مخ ته مراجعه وسي.

ساتي. امیر حبیب الله او د ده سکه ورور سردار نصرالله خان ډار پدل، چي ملکه سلطانه به د خپل زوی شهزاده محمدعمر د پاچا کولو په منظور د دغي اروپایي ډاکټري له نفوذ او موقعیت څخه کار واخلي او ښایي د دې په وسیله د هند له برتانوي مقاماتو سره مکاتبه وساتي، ځکه نو د دوی پر لیدنو کتنو باندي بندیز ولګېد.(۱)

## دوکتورس للیاس همیلټن Miss. Hamilton

للیاس همیلټن د انګلستان تبعه او د امیر عبدالرحمان خان مخصوصه ډاکټره وه. تر دې وړاندي یې د کلکتې ښار په Lady Dufferin Hospital کي روغتیایي خدمات تر سره کول. په کابل کي یې د خدمت موده څو میاشتي ښوول سوې ده.(۲) دې په ۱۸۹۴م (۱۳۱۲ق) کال د کابل په ښار کي لومړنی عصري روغتون تاسیس کړ. په دغه وخت کي د افغانستان روغتیایي مؤسسې دوه رازه وې. یو شمېر یې د یوناني طبابت څانګي وې، چي د دودیزو طبیبانو لخوا منځ ته راغلي وې او ځیني یې د عصري طبابت پر اصولو ولاړي لومړنۍ اداري وې، چي د هغه وخت په اصطلاح یې د "فرنګي طب" له مخي روغتیایي چاري پر مخ وهلې. په افغانستان کي د عصري طب لومړنۍ خښته ډاکټر دایم خان او ډاکټر عبدالرحیم خان په لاسو کېښېښوول سوه. دوی دواړه د امیرعبدالرحمان خان لخوا د ده د پاچهۍ په هماغه لومړیو کلونو کي استخدام سوي وو. خو د للیاس همیلټن هلي ځلي په دې برخه کي تر دوی بنیادي وې او لکه وړاندي چي و ویل سوه، د دې په لاس لومړنی عصري روغتون جوړ سو. دې انګلیسۍ ډاکټري له ځان سره یوه بله انګلېسۍ مېرمن د مرستیالي په توګه راوستې وه. د ډاکټر للیاس بل ستر کار دا و، چي دې د لومړي وار لپاره په کابل کي د کوي ناروغۍ واکسین رواج کړل او ماشومانو ته به یې د کوي د مخنیوي لپاره رګونه وهل. دغه واکسین یې

---

(۱) هماغه اثر. ۲۹۵مخ.

(۲) ستیفن ویلر. ۲۲۴مخ.

له سخوندرانو (خوسکیانو) څخه لاس ته ور وړل. په دې برخه کې یې ځینې شاګردان هم و روزل او دغه راز یې د امیرعبدالرحمان خان په امر یوه رساله هم ولیکله، چې تر ژباړلو وروسته په هیواد کې تکثیر سوه. ډاکټر للیاس همیلټن د امیر له زوی سردار نصرالله خان سره په هغه سفر کې د مخصوصې ډاکټرۍ (حکیم باشي) په توګه ملګرې وه، چې د انګلستان حکومت په بلنه یې د خپل پلار پر ځای په ۱۸۹۴م کال هغه هیواد ته کړی و.[۱]

په ۱۸۹۴م کال، چې پر امیرباندې د نقرس ناروغۍ یوه سخته حمله راغله، للیاس همیلټن یې د معالجینو په ډله کې وه او ستیفن ویلر خو په دغه معالجه کې د دې رول دومره غټوي، چې وایي "د دې مهارت تر جالینوس و بقراط هم واوښت."[۲] دا ارګ ته څرمه په یوه کوچنې کورکي یوازې اوسېدله. تر کور دباندې ګزمه پر ولاړه وه. دا د خپلې تنهایۍ او د امیر د ټینګ امنیت په باب لیکي "که څوک د امیر تر محافظت لاندې وي، دا پروا نلري چې ته یوازې یې، که یو څوک درسره دئ. په دواړو حالاتو کې به درته هرځای ځان محفوظ ښکاري."[۳]

ښاغلو لوستونکو ته به څرګنده وي. چې د تاج التواریخ انګریزي ترجمه The life of Abdur Rahman Amir of Afghanistan له هغې مسودې څخه ژباړل سوې، چې په کابل کې د امیر په لاس یا د ده تر نظر لاندې کښل سوې وه او Jhon Murray یې خپرونکی دی. جان مرې وایي چې د دغه کتاب د یوولسو فصلو مسوده همدغې ډاکټرللیاس همیلټن له ځان سره له کابله لندن ته یووړه او هورې د سلطان محمدخان په لاس ترجمه سوه. په دې توګه د ډاکټر للیاس همیلټن د دغه فرهنګي خدمت نتیجه وه. چې د افغانستان د تاریخ یوه ډېره مهمه برخه نړیوالو ته ور وپېژندل سوه

---

[۱] سفر نامه ....-۳۷۷-۳۷۸ مخونه.

[۲] ستیفن ویلر-The Ameer Abdur Rahman.۲۲۴مخ. جالینوس او بقراط د لرغوني طب دوه مشهور طبیبان وو.

[۳] هماغه ځای-هماغه مخ.

تاج التواریخ یا د امیرعبدالرحمان خان د اټوبیوګرافۍ په باب د سټیفن ویلر Stephen Wheeler خبري هم په زړه پوري دي. دی وایي " څه موده وړاندي (دا خبري دی په ۱۸۹۵م کي کوي، هوتک) داسي ویل کېده، چي امیر د خپلي اټوبیوګرافۍ په لیکلو لګیا دی... د دغي اټوبیوګرافۍ یوه برخه یا ښایي یوه بله اټوبیوګرافي د امیر په لاس د روسي ترکستان ګورنر جنرال ته هغه وخت ورکول سوې وه، چي امیر هورې د تبعید شپې تېرولې. دغه برخه په روسي ژباړل سوې وه، چي وروسته بیا د هند په استخباراتي څانګه کي د ډګروال ګوان Colonel Gowen لخوا په انګلیسي و ژباړل سوه."[1] سټېفن ویلر وروسته زیاتوي، چي دغه اټوبیوګرافي په اسانه نه سي موندل کېدلای، ځکه نو ده د خپل کتاب په پای کي ټوله راوړې ده او د ده د کتاب دوولس مخه یې نیولي دي.[2]

---

[1] هماغه اثر-۲۳۵مخ.

[2] ما (هوتک) د آیینهٔ افغانستان مجلې د ۱۹۹۴ کال د اګست د لومړۍ نېټې په ګڼه کي د "تاج التواریخ ترجمه ده که اصل؟"

تر عنوان لاندي یوه لنډه لیکنه کړې وه. په هغه وخت کي ما د سټیفن ویلر پورتنۍ یادونه نه وه لوستې. ځکه مي نو د امیر عبدالرحمان د اټوبیوګرافۍ د روسي ژباړي یادونه نه وه کړې. بله د سمېدلو خبره، دا ده، چي هورې ما " د بدبه امیری" د تاج التواریخ د اردو ژباړي دوهم چاپ بللی و. " د بدبه امیري" د محمد حسن بلګرامي خپله څېړنه معلومېږي.

له موضوع سره د ارتباط له مخي به د تاج التواریخ او د هغه د فارسي ژباړونکي غلام مرتضی خان قندهاري په باب د سراج التواریخ د مولف فیض محمد کاتب هزاره د لیکني لنډیز هم راننقل کړو. فیض محمد کاتب لیکي چي سلطان محمد خان هندي څه موده د امیرعبدالرحمان خان د حضور د منشي په توګه کار وکړ. د کابل له خلکو سره یې خپښي وکړه او یوه کابلۍ ښځه یې په نکاح کړه. وروسته د امیر له اجازې پرته له کابله و تښتېد او هند ته ستون سو. فیض محمد د ده د بیرته ستنېدو علت نه بیانوي خو د ده په باب د(الخائن خالف) اصطلاح کاروي او له دې اصطلاح څخه ښکاري چي د امیر په نظر یې کوم ورانی یا خیانت کړی و. په هرصورت، فیض محمد کاتب زیاتوي چي منشي سلطان محمد د امیر عبدالرحمان خان(پندنامه دنیا و دین) کتاب له فارسي څخه په انګلیسي ژبه و ژباړه او د افغانستان په باب یې له خلکو څخه نور اورېدلي مطالب ور سره یو ځای او په دوو ټوکو کي یې د(تاج التواریخ) په نامه خپاره کړل او له دې بابته یې ښې ډېري پیسي تر لاسه ←

## مسټر کلیمینس[1] Mr. Clemence

دغه انګرېز د څارویو ډاکټر (بیطار) او د امیرعبدالرحمٰن خان لخوا کابل ته غوښتل سوی و. د دغه بیطار یادونه په تاج التواریخ کي سوې ده او جان الفرېډ ګرې یې هم پخپل کتاب کي نوم اخلي. ده د ناروغو اسانو د تداوۍ چاري پر مخ وهلې او د حیواناتو د نسلګیرۍ کار یې هم کاوه. په دې برخه کي یې شل تنه افغاني ځوانان روزلي وو. دی چي کله له انګلستانه کابل ته راتلی، له ځان سره یې شل دانې انګلیسۍ مېږې راوړې وې. جان الفرېډ ګرې وایي، چي کلیمینس له انګلستانه دوه درې اسان او یو څو یابو ګان هم راوستل، چي په کابل کي نسلګیري ځني وسي. امیر دی فیض آباد ته ولېږه او هورې یې خپل مرکزونه جوړ کړل.[2] افغانستان ته د کلیمینس د راتګ دقیقه نېټه ما ته څرګنده نه سوه، خو ګرې لیکي چي په ۱۸۹۲م کال له مسټر پاین سره دوه تنه انګرېزان کابل ته راغلل. یو یې د باغ او بل یې د یورکشایر Yorkshire د اسانو روزونکی و.[3] زه (هوتک) یقین ته په نزدې ګومان فکر کوم، چي دغه سړی به زموږ د بحث وړ کلیمینس و. د کلیمینس تر راتګ تقریباً او یا کاله وړاندي د ویلیام مور کرافټ په نامه یو بل انګریز جراح او آس پېژندونکی هم د ایسټ انډیا شرکت لخوا له کشمیره کابل ته راغلی و. ده بلخ او میمنې ته

---

← کړې. دغه انګرېزي متن غلام مرتضیٰ خان قندهاري په مشهد کي له سره بیا ترجمه او خپور کړ. فیض محمد کاتب وایي چي ده د سراج التواریخ په کښلو کي د (پند نامه دنیا و دین) د کابل له چاپ څخه استفاده کړې ده ځکه چي دا چاپ د امیر خپله لیکنه وه خو د تاج التواریخ له دوهم ټوک څخه یې ځکه استفاده و نه کړه، چي د مطالبو پر سموالي یې باور نه در لود. (سراج التواریخ ۳ جلد ۵۱۶-۵۱۷ مخونه).

(1) دغه نوم په سفرنامه... او پښتو تاج التواریخ کي "کلمنتیس" ثبت سوی، چي زما په خیال سم نه دی. د (کلیمینس) په شکل لیکنه یې ماد ډاکټر ګرې له کتابه واخیستله. (هوتک)

(2) اټ د کورټ آف د امیر. ۴۷۲، ۴۷۱ مخونه.

(3) هماغه اثر. ۴۷۶مخ.

سفرونه وکړل او په اندخوی کي مړ سو. ده یوه سفرنامه کښلې وه، چي تر مړيني يې شپږ کاله وروسته له لندن څخه د ویلسن په لاس چاپ او خپره سوه.[(۱)] له امکانه لیري نه ده، چي ویلیام به سیاسي ماموریت درلود. تر ده دوولس کاله وروسته د انګلستان یو بل سیاسي مامور (پاټینجر) د اسانو د سوداګر په جامه کي کابل ته راغی، بیا د ملایانو په لباس کي هرات ته ولاړ او د هرات د محاصرې په وخت کي يې سیاسي فعالیت کاوه.[(۲)]

د مسټر کلیمینس مېرمن هم د ۱۸۹۴م کال په اپریل کي له خپل دوه کلن ماشوم او یوې نرسي سره کابل ته ورسېده. امیر عبدالرحمان خان ورته یوه بګۍ او څلور ساتونکي ورکړل. ستیفن ویلر د دې له خولې لیکي، چي مېرمن کلیمینس یوه ورځ د ماپښین لخوا له خپل مېړه سره تر ښار دباندي د چکر لپاره و وتله. تر شا يې یو ساتونکی پر آس باندي بدرګه ورسره روان و. شپه راغله او دوی و ساتونکی سره ورک سول. دوی په یکړ سر په بازار کي وګرزېدل او د شپې پر لسو بجو کورته و رسېدل خو د بې محافظه ګښت له بابته هیڅ راز اندېښنه ورسره نه وه. ځکه هر ځای. چي به له خلکو سره مخامخ کېدل "سلام او مانده نباشی" يې ور ته ویله. مېرمن کلیمینس لیکي، چي د امیر ګرانه ماندینه "ملکه" ډېره جذابه او ښکلې ښځه وه او که د یوه ختیځ وال په ژبه معرفي سي، نو ښکلا يې تر لمر زیاته ځلېده او قد ته يې سروه شرمېدله. دا زیاتوي، امیر صاحب د دې د کوچني ماشوم په لیدلو ډېر خوښ سو، چي په خونه کي به يې دې خوا ها خوا ته ځغستل او هرڅه چي به په مخه ورتلل، لوبي به يې په کولې.[(۳)]

---

(۱) د افغانستان تاریخي پېښلیک ـ ۱۸۰مخ.

(۲) هماغه اثر ـ ۸۳ مخ.

(۳) ستیفن ویلر ـ The Ameer Abdur Rahman.۲۲۵مخ.

## والټر[۱] Walter

والټر هم د انګلستان تبعه و او د امیر لخوا د ګنډونکي په توګه استخدام سوی و. تر دغه وخت وړاندي د کابل د ملکي او پوځي جامو د ګنډلو کار د هندي ګنډونکو لخوا سرته رسېدلی. امیر د دوی له کاره ناخوښه ؤ، ځکه یې دغه انګرېز ګنډونکی (همدغه والټر) استخدام کړ. ده د جامو رغولو په برخه کي ټولي نیمګړتیاوي سمي کړې او د میرمنشي سلطان محمدخان په مرسته یې په دې باب یوه رساله وکښه، چي په هغې کي د ګنډلو ټول هغه قواعد بیان سوي وو، چي په انګلستان کي رواج وو.[۲] د والټر مېرمن هم د څه مودې لپاره د مسټر کلیمینس له مېرمني سره یو ځای کابل ته په تفریح تللې وه.[۳]

د والټر په باب یوه لنډه یادونه د جان الفرېډ ګرې په کتاب کي هم سته. دی لیکي، چي د والټر په نامه یو انګرېز ګنډونکی له مسټر پاین سره کابل ته راغی او زیاتوي، چي والټر یو وخت له ده سره پغمان ته ولاړ او هورې یې غوښتل د کوچني شهزاده محمد عمر لپاره کرتۍ روغه کړي.[۴]

## مسټر ریچیز Mr. Riches

په دغه نامه د یوه انګرېز مستخدم یادونه د تاج التواریخ په انګلیسي متن (۷۶مخ) کي سته او امیر وایي، چي د پیانو رغول یې له دغه سړي څخه زده کړي او بیا یې ځینو نورو افغانانو ته هم ور ښوولي دي. په سفرنامه او پښتو تاج التواریخ کي د دغه سړي نوم "مسټر پرخر؟" راغلی دی.[۵] مایي د انګلیسي متن ثبت غوره وباله او رانقل مي کړ. بل ځای مي د ده په باب څه نه دي موندلي.

---

(۱) د ده نوم په سفرنامه.. او پښتو تاج التواریخ کي "دالتر" دی، چي د والټر ناسمه لوستنه ده او د "والتر" په نامه کي د "واو" توري له مغشوشي لیکني څخه پېښه سوې ده.

(۲) سفرنامه.... ۳۵۴مخ.

(۳) ستیفن ویلر. The Ameer Abdur Rahman ـ۲۲۵مخ.

(۴) اېټ د کورټ آف د امیر . ۴۴۱، ۴۷۶مخونه.

(۵) سفرنامه...۳۸۲مخ، پښتو تاج التواریخ.۲۹۴ مخ .

## فلیشر Fleicher

فلیشر د المان تبعه او د امیر عبدالرحمان خان لخوا د توپک جوړولو د صنعت ښوولو په منظور استخدام سوی و. د ده یادونه د فرانک مارتین انګریز او جیویټ امریکایي په یاداښتو کي موندلای سو. فرانک. اې. مارتین پخپل کتاب Under The Absolute Amir کي د دغه جرمني انجنیر یادونه داسي کوي "مسټر فلیشر به، چي په کابل کي زما د استوګني په ورستیو کلونو کي اوسېدی، د جمعې په ورځو زما سره ملګری کېدلی او په چمنانو کي به مو ټوله ورځ تېروله.. نوموړی د ۱۹۰۴ کال په نومبر کي هندوستان ته د تلو په لار کي د خپل افغان بدرګه افسر لخوا و وژل سو"[1] وایي چي تر دغي پېښي وروسته به له بهرنیانو سره هرومرو یو (مهماندار) ګومارل کېدی[2].

د دغه جرمني انجنیر مېرمني د خپلو ماشومانو د روزني لپاره یوه جرمنۍ نرسه افغانستان ته رابللې وه. دې نرسي د امیر له ګراني ماینې سره مناسبات ټینګ کړل او د امیر حرم ته یې پناه ورووړه. دې غوښتل، چي مسلمانه سي. مېرمن فلیشر پر امیر زور واچاوه، چي دغه ښځه دي بیرته د دې کورته ولېږل سي. امیر د ښځي له بیرته ستنېدلو سره موافقه و نه کړه. دې ښځي د امیر په موافقه له یوه نورستاني افسر سره واده وکړ. امیر د دغه افسر تنخواه ور زیاته کړه او یو کور یې د استوګني لپاره ورکړ.[3]

مسټر فلیشر یو له هغو شپږو اروپایانو څخه و، چي د امیر عبدالرحمان خان د مړیني پر وخت (۱۹۰۱م)په کابل کي اوسېدل. نور پنځه یې د ده مېرمن، زوی او نرسه، فرانک مارتین او مېرمن ډالې وه.

---

[1] فرانک مارتین. Under The Absolute Amir. ۱۷۵مخ. ۱۹۰۷م.

[2] جیویټ An American Engineer in Afghanistan. ۸مخ.

[3] فرانک مارتین. ۱۸۵مخ.

# دوهمه برخه

## د امیرحبیب الله خان (سراج الملة و الدین) دوره(۱)

## ۱۹۰۱-۱۹۱۹م




### اې - سي - جیوټ A.C.jewett

دا سړی د کلیفورنیا اوسېدونکی امریکایي انجنیر و، چې د سراج الملة والدین امیرحبیب الله خان (۱۹۰۱- ۱۹۱۹م) لخوا په جبل السراج کې د برېښنا د یوې د ستګاه د جوړولو لپاره استخدام سوی و. نوموړی له ۱۹۱۱م څخه تر ۱۹۱۹پوري په افغانستان کي و. له امیر او د هغه له و زیرانو سره ډېر محشور و او له نزدې یې ور سره پېژندل. په افغانستان کي یې د خدمت په وخت کي فارسي ژبه زده کړې وه. دی لومړی امریکایي تبعه و، چې له ۱۸۷۸م څخه وروسته یې په افغانستان کي د استوګني اجازه موندلې وه.

جیویټ د برېښنا مهندس و. د پاسیفیک په ساحل کي د سانفرانسیسکو د ښار لومړی اور ګاډی(ترامواى) او په کلیفورنیا کي لومړی برقي ټرانزمیشن او دغه راز نوري دستګاوي د ده په لاس جوړي سوي وې. دی د جنرال الکټریک کمپنۍ لخوا د هندوستان جنوب ته ولېږل سو او په میسوري کي د برېښنا یوه دستګاه جوړه کړه. دغه راز یې د هندوستان په شمال کي سرینګر ته نزدې ور ته دستګاوي و درولې. د جیلم د برېښنا دستګاه هم د ده په لاس فعاله سوه. دی په ۱۹۱۰م کال له هنده

---

(۱) د دغې دورې د بهرنیو مستخدمینو په باب معلومات له هغه کتابه راغونډ سوي دي، چې An American Engineer in Afghanistan نومېږي او لیکونکي یې اې - سې - جیوټ دئ.

امریکا ته ستون او سمدلاسه د یوه برتانوي شرکت لخوا افغانستان ته د کار لپاره و ټاکل سو. په لومړي سرکي داسي فکر کېدی، چي د ده د ماموریت دوره به یو کال لا دوه وي. خو ده هورې اته کاله تېر کړل. ده د جبل السراج پروژه په داسي شرایطو کي بشپړه کړه، چي د اړتیا وړ مواد ور ته له هندوستانه د پیلانو په ګاډیو کي راتلل، د امیر احکام به په میاشتو میاشتو ځنډېدل او پرځنګ یې کارګران هم ټول غیر مسلکي کسان وو او زړه نا زړه یې کار کاوه. جیویټ ته له اتو کالو کار وروسته خپل هیواد ته د تللو اجازه د امیر لخوا ور کړه سوه او کلیفورنیا ته ستون سو. په Papeete کي یې ځانته کور جوړ کړ. په دغه کور کي یې هندوستانۍ نقاشۍ، پېښوري ټوکران، افغاني چړې او توپک، د کابل یاد ګاري ټوکران او جامې ځانته ځوړندي کړي او د هغو په ننداره یې خپلي تېري خاطرې ژوندۍ کولې. دی د ۱۹۲۶م کال د فبرورۍ پر دریمه د پنځه پنځوسو کالو په عمر په ناڅاپي توګه د Sunstroke له امله مړ سو.

جیویټ له افغانستانه زیاتره لیکونه خپلي ورېرې Marjorie Jewett Bell ته لېږل او په هغو کي یې د خپل ژوند او مسلکي کارو او دغه راز د افغانستان د کلیو، ښارو، کلچر او وګړو په باب بیانونه ور ته کښل. دغه لیکونه او نور یاداښتونه و عکسونه د ده تر مړیني وروسته د نومړې مارجوري لخوا له سره تنظیم او ترتیب سول او د An Amarican Engineer in Afghanistan په نامه د یو کتاب په شکل په ۳۳۵ مخونه کي له څلور مخه سریزې، فهرست او Glossary سره په ۱۹۴۸م کال په لندن کي چاپ سول. افغانستان ته د جیویټ سفر د ۱۹۱۱ کال د مي پر شپږویشتمه د جمعې په ورځ پیل سو. په دغه ورځ یې له پېښوره مخ پر کابل حرکت و کړ او له اوو کالو اوو میاشتو وروسته د ۱۹۱۸م کال د دسمبر پر ۲۱ له کابله رخصت سو.[1] د ده د سفر ټول و سایل په پېښور کي د افغاني استازي غلام حیدرخان

---

[1] جیویټ ـ ان امیریکن انجنیر این افغانستان ـ ۳۲۶ مخ.



د جبل السراج د برېښنا فابرېکې سامان پر پيلانو باندي
له پېښوره راليږديدل.

لخوا برابر سوي وو.[۱] د جبل سراج د برېښنا دستګاه د کابل ښار ماشین خانو ته د انرژۍ برابرولو او د دولتي او شاهي ماڼیو د روښانولو په مقصد تاسیس سوې وه. د دغې دستګاه تر جوړېدو وړاندي د کابل ماشینخانې د لرګیو د سوځلو له لاري په تولید سوي. بخار چلېدلې او دسونګ موادو لګښت یې په کال کي یو لکو پنځوس زرو ډالرو ته رسېدی.[۲] دغه دستګاه پر امیرحبیب الله خان باندي د بمبیي د ښار د برېښنا یو شرکت خرڅه کړې وه. د دستګاه د لېږدولو او ساختماني چارو لګښت یې امیر پر خپله غاړه اخیستی و. د دستګاه ظرفیت ۱۵۰۰ کیلوواټه و. د جوړېدلو لپاره یې ۵۱۶ تنه کارګران ،دوه ویشت افسران ( یو قوماندان ،

---

[۱] غلام حیدر خان په پېښور کي د پوسټ ماسټر دنده درلوده. جیویټ یې د رشوت خور سړي په توګه نوم اخلي. د ده د کتاب ایډېټره مېرمن مارجوري د کتاب په ۱۹۵مخ کي لیکي(... په پېښور کي د افغاني پوسټ ماسټر په توګه د غلام حیدر ماموریت د ۱۹۱۹م کال د می پر اوومه پای ته ورسېدی. د هند برتانوي حکومت ته څرګنده سوه چي نوموړي له خپل دفتر څخه د تبلیغاتي مرکز په توګه کار اخیست او په پام کي یې وه چي په پېښور کي داخلي پاڅون جوړ کړي او د هغه له لاري افغاني لښکرو ته لار اواره کړي چي دغه ستراتژیکي ښار ونیسي. انګرېزانو غلام حیدر او د هغه ملګري بندیان کړل.) له دې بیانه ښکاري چي غلام حیدر د انګرېزي ضدکمپاین یو غړی و. زما د دې ګومان ملاتړ په(افغانستان درمسیر تاریخ...۷۴۶، ۷۴۹مخونو کي) موندلای سو. ارواښاد غبار د بیان له مخي د ناظر محمد صفرخان د زوی محمد اخترخان په مشرۍ د شاه امان الله د ترور په نیامت یوه ډله جوړه سوه چي په غړو کي یې(غلام حیدر سرحدی) هم و. دغه سړی داسي نخښه ویشتونکی و، چي له ۴۰ مترو فاصلې څخه یې اګۍ په ګولۍ ویشتلای سوای. د دوی په فکر شاه امان الله د ظلم لار غوره کړې وه. د دغه غلام حیدرخان په ګډون څو تنو شاه ته د پغمان په لار کي څو(کمین) ونیو، خو بریالي نه سول او په نتیجه کي دنایب السلطنه په نسبت د یوې غلط فهمۍ له امله د غلام حیدرخان په شمول ډېر زیات انګرېزي ضد کسان اعدام یا بندیان سول.

[۲] جیویټ ـ ۲۲مخ

شپږ کپتانان، پنځلس صوبه داران، دوه مېجران، دوه سرجنان، دوولس کوټ حوالداران، اته حوالداران، شپږ بنایان، شپږ ښبنان او پنځه ترکاڼان) ګمارلي وو. د ترانسپورټ لپاره یې دوه پیلان، یوسلو پنځه ویشت اوښان او یو زیات شمېر یابو ګان ور کړي وو. ماشین آلات یې د پیلانو په ګاډیو کې په څه د پاسه پنځو کالو کې له هندوستانه رانقل سول.

د دستګاه کار د۱۹۱۲م کال د جولای پر دیارلسمه پیل سو[۱] او پسله شپږنیمو کالو (د ۱۹۱۸ کال د فبرورۍ په سر کې ـ دلو (۱۲۶۹ ق) دومره اندازې ته ورسېد، چې د جیویټ او بېکر په واسطه د برېښنا یو څراغ روښانه سو او خلک ورته په تماشه راغلل[۲] جیویټ د امیرحبیب الله خان په باب د یوه یاداښت په ترڅ کې چې د ۱۹۱۹م کال د فبرورۍ پر څلیرویشتمه یې په کلیفورنیا کې هغه وخت کښلی و، چې د امیر د وژلو پېښه یې په ورځپاڼو کې لوستې وه، داسې لیکي:

(امیرحبیب الله خان، چې مالیدلی و، یو ډېر روشنفکر او ډېر مستعد افغان و. دی د پیاوړي شخصیت څښتن و او په زیاته اندازه عمومي معلومات یې درلودل. ډېره قوي حافظه یې وه. ده په داسې وخت کې پاچهي کوله، چې د دسیسو او دغلبازۍ مطلقه فضاحاکمه وه. په کابل کې استوګن اروپایان او دغه راز افغانان سره له دې چې دی د خپلو

---

[۱] د افغانستان تاریخي پېښلیک ـ ۲۲۲ مخ او افغانستان در مسیر تاریخ ـ ۷۰۵ مخ کې چې د جبل السراج د اوبو د برېښنا کارخانې د کار پیل د ۱۹۰۷م کال په پېښو کې راغلی دئ، ماته د تامل وړ ایسي. دغه راز په(پېښلیک)کې د دغې کار خانې پرانستل د ۱۹۱۴م کال په جنوري کې بلل سوي دي، چې دا خبره هم د جیویټ له څرګندونو سره سر نه خوري. له استادرفیع صاحب څخه مې اورېدلي دي، چې علامه حبیبي مرحوم د دغه کتاب (پېښلیک ) له ناسم چاپېدلو څخه ډېر ناراض و.

[۲] جیویټ ـ ۳۰۹ مخ.

ارواښاد غبار د جیویټ نوم اخلې خو نه ښيې، چې د کوم هیواد تبعه و. دی لیکي(واما فابریکه برق آبی جبل السراج... زیر نظریک انجنیر خارجی بنام جوت کار تاسیس(آن) آغاز گردید. ولی این فابریکه۱۲سال بعد(۱۹۱۹) توانست که توسط یک انجنیر هندی بنام عزیزالله خان کابل را تنویر نماید)(افغانستان در مسیر تاریخ ـ۷۰۵مخ)

٥٨٥١



امریکایي انجنیر A.C. Jewett چي د ده د کار په باب بشپړ
بیان د همدې کتاب په دوهمه برخه کي راغلی دئ



اې. سي. جيويټ په افغاني جامه کې

لغزشونو له امله غندي، خو پر دې خبره يوه خوله دي، چي دى د واکمنۍ لپاره په ټوله معنا بهترين سړى و.)[1] جيويټ د ۱۹۱۴م کال د ډسمبر پر پنځلسمه ( ۲۶ محرم ۱۳۳۳هـ ق ) د امیرحبیب الله خان لخوا د يوه فرمان په ترڅ کي خپل هيواد ته د رخصتۍ تېرولو اجازه ترلاسه کړه. امير ور ته څلور مياشتي رخصتي ورکړه. د پنځو مياشتو تنخواه يې پېشکي ور حواله کړه او زر پونډه يې نور هم نغدي ورکړې. دغه راز يې د ځان لپاره د ځينو سامانونو د پېرودلو يو اوږد ليست هم ورکړ چي په هغه کي تفنگچې، د گوليو توپک، باروت (Pistols for the gentry) د اشپزۍ سامانونه، د سيگار لايټرونه(Flatirons) او نور د کور سامانونه. د گنډلو برقي ماشينونه،د مېز څراغونه، ( البته ټول برقي سامانونه د کابل بربښنا له ولټېج او جريان سره سم )، د مېوو د جوس ايستلو ماشينونه او د بادام، چارمغز او نورو د تېلو ايستلو ماشينونه، د ادويه جاتو د ميده کولو سامانونه، د ژړو او کاغذي کارتوسو ډکولو ماشين، د سپرلۍ زين او قيضې ( ملونه )، د کمپاين فرنېچر، د خاورو د تېلو بخارۍ، د موټر ټول او دوربينونه. د دې سامانونو لپاره يو زر (Sovereigns) ورکړې وه او دغه راز څلور زره نوري اضافي روپۍ هم ورکړي وې چي په هغو باندي جيويټ پخپله خوښه نوي اختراع سوي سامانونه ور رانيسي.جيويټ وايي چي دا ټول سامانونه يې د ورکړه سويو پيسو په نيمايي ور رانيول او امير د ده له خريدارۍ څخه ډېر خوښ و. ( د جيويټ مقاله Asia مجله د ۱۹۲۰ع کال د جون گڼه ) دا مجله د امريکا په متحده ايالاتو کي خپرېدله او بشپړ نوم يې – Aisa (The American Magazine on the Orient) و.

---

[1] جيويټ ـ ۳۲۷، ۳۲۸ مخونه.

## بېکر Baker

دا سړی د انګلستان تبعه او د امریکایي انجنیر اې. سي. جیویټ مرستیال انجنیر و. ده اوسټ (Sut) دواړو د جیویټ تر لاس لاندي د جبل السراج د بربښنا په پروژه کي کار کاوه.[۱] کله چي په ۱۹۱۶م کي جیویټ له افغانستانه په رخصتي تلی، له امیرحبیب الله خان څخه یې وغوښتل، چي بېکر د ده پر ځای د پروژې مشر وټاکي، معاش و کارګران یې هم ورزیات کړي. امیر ور سره و منل اوله بېکر سره یې د پنځو کالو لپاره قرار داد وکړ. بېکر دوه کاله په همدې پروژه کي کار وکړ[۲]. په ۱۹۱۸م کي په کابل کي د انفلوانزا ناروغي راغله او بېکر په جبل السراج کي ناروغ سو. امیر له کابله د جراح مرستیال سلطان محمد ور ولېږه. نوموړي د بېکر ناروغي انفلو انزا وګڼله او تد اوي یې ور شروع کړه. امیر د تاکید لپاره ډاکټر غلام محمد هم ور ولېږه.[۳] ده د بېکر ناروغي لویې تبه(محرقه) تشخیص کړه او د محرکې تداوي یې پیل کړه. د دواړو ډاکټرانو تداوي نتیجه ور نه کړه او بېکر د ناروغۍ په شپاړسمه ورځ مړ سو. امیر یې مړی پر تخت روان باندي پېښور ته ولېږه او هورې د پرنګیانو په هدیره کي ښخ سو.[۴]

د همدغه بېکر یو اخبنی هم په کابل کي د امیر په مستخد مینو کي و، چي برنهم Burnham نومېدی او جیویټ یې د خپل کتاب په ۳۲۴مخ کي نوم اخلي.

د برنهم په باب مي نور څه نه دي اورېدلي.

---

(۱) جیویټ ـ ۲۸۶ مخ.

(۲) هماغه اثر ـ ۲۹۶ مخ.

(۳) د دغو دوو ډاکټرانو په باب مي معلومات و نه موندل.

(۴) جیویټ ـ ۳۲۰، ۳۲۲ مخونه.

## مستېر سمیت Mr. Smith

مستېر سمیت هم د اې. سي. جیویټ امریکایي تر لاس لاندي د جبل السراج په پروژه کي د مرستیال انجنیر په توګه کار کاوه. اصلاً انګرېز و. د ده په باب نور معلومات لاس ته رانغلل خو د ده او شهزاده عنایت الله خان(معین السلطنه) تر منځ په ۱۹۱۴م کال یوه شخړه پېښه سوې وه، چي په راوړلو ارزي او زه به یې د هغه فرمان له مخي بیان کړم، چي د شهزاده عنایت الله خان لخوا د جیویټ امریکایي انجنیر په نامه د همدې موضوع په ارتباط د ۱۳۳۳ق کال د روژې پر څلورمه صادر سوی و. پېښه داسي وه، چي سمیت ته یې په اندرابي کي د یوه حکومتي کور په لومړي پوړ کي د استوګني لپاره ځای ور کړی و. په لوړ پوړ کي د حبیبیې مدرسې دوه تنه استادان اوسېدل. سمیت له د غو دوو تنو استادانو سره په یوه کور کي خوښ نه و ځکه نو ده او مېرمني ته یې د مهمانخانې په (کوټې باغ) کوچنۍ خوني و ټاکلې او د خارجه دفتر د کارکوونکو لخوا ور وښوول سوې. دا خوني د سمیت پر طبعه برابري نه وې. وروسته امر وسو، چي د(کوټی نقاشي) پر مخامخ دي دوې ښې کوټې ور کړه سي. دا ځای هم د سمیت خوښ نه سو او ویې غوښتل، چي بیرته دي د اندرابۍ کور ور کړه سي. د پنجشنبې په یوه شپه یو استاد د سرای غولي ته د اودس لپاره راوتلی و. سمیت ږغ پر وکړ، چي څوک یې؟ د استاد لخوا د ځان له ښوولو سره سره سمیت ورباندي د سوټې واری وکړ او استاد یې بېهوښه کړ. تر واري د مخه یې استاد ته سپکي سپوري هم ویلي وې. استاد او سمیت دواړه شهزاده عنایت الله ته عارض سول. تر تحقیق وروسته شهزاده د استاد سیله وکړه او سمیت ته یې د قانون ماتولو له امله سزا ورکړه او په یوه فرمان کي یې جیویټ ته ولیکل(څرنګه چي ته د مستېر سمیت آمر یې، باید د ده په هغه سلوک، چي د قوانینو پر ضد یې سرته رسولی او په هغه جزا، چي زموږ

لخوا ور کړه سوې ده، خبر سي. ده ته باید خبر ور کړي، چي که په راتلونکي کي د ده یا د کوم بل چا لخوا د قانون پر ضد جزوي ترین اقدام وسي، سخته جزا به ومومي)[۱]

د حبیبیې مدرسې دغه استاد مولانا محمد علي قصوري نومیدی، چي د هند تبعه او د امیر حبیب الله خان لخوا کابل ته د نوموړي مدرسې د چارو د سمبالولو لپاره را بلل سوی و. دی په ۱۹۱۵ع کي د مدرسې د مدیر په توګه وټاکل سو. ده خپل خاطرات د " مشاهدات کابل و یاغستان" په نامه په یو کتاب کي خپاره کړي دي. دا کتاب تر دې ګړیه ما نه دی کتلی څو ښاغلي عبدالمالک همت یې څو پاڼې ژباړلي او د "میوند" مجلې د دوهم کال څلرمي ګڼې په ۱۵ مخ کې چاپ کړي دي. مولانا هورې بې له دې چي، د سمت نوم واخلي د خپلو وهلو ټکولو بیان کړی دئ.

وايي محمد علي قصوري په کابل کي له اوسېدونکو انګریزي مستخدمینو سره جوړ نه و او تل به یې شهزاده عنایت الله خان ته د هغوی په باب شکایتونه کول. دی پخپلو خاطراتو کي یو ځای لیکي چي په حبیبیه مدرسه کي د دوو خونو د زیاتېدو د لګښت لپاره ده درې زره روپۍ اټکل کړي وې او د هغه وخت د انګریزي سر انجنیر لخوا اووه اتیازره روپۍ اټکل سوي وې. شهزاده مولاناقصوري ته د خونو د جوړولو کار وسپاره او هغه په دوه زره و درې سوه روپۍ باندي جوړي کړې. دې کار د ده او په کابل کي د اوسېدونکو انګریزي مستخدمینو ترمنځ مناسبات خړ پړ کړل مولانا محمد علي قصوري د هند د آزادۍ غوښتونکو له ډلي څخه و او له مولانا ابوالکلام آزاد، حکیم اجمل خان، مولانا عبیدالله سندهي او نوره مشرانو سره نژدې همکار و.

---

(۱) جیویټ ـ ۲۶۱ مخ.

## سټ Sut

د اې. سي جیویټ امریکایي انجنیر مرستیال او په خټه انګریز و. جیویټ یې افغانستان ته د راتلو یادونه کوي او وایي، چي (ده راته هغه وخت له هنده تیلګرام وکړ، چي زه له هندوستانه مخ پر افغانستان روانېدلم)[1] نوموړی د ۱۹۱۵م د اګسټ په سر کي جبل السراج ته د خپلي دندې لپاره ورسېدی او جیویټ د ده په ورتګ خوښ او لیکلي یې و(دی که څه هم یو خواګرزن سړی او کوټتوب یې بیا بل سرباری و، خو دلته څوک هر راز استعداد ته اړتیا لري.[2] جیویټ له جبل السراج څخه د یوه لیک په ترخ کي، چي د ۱۹۱۸ کال د نومبر پر درویشتمه یې کښلی دئ، پېښور ته د بېکرد تابوت د انتقالولو جریان کاږي او په دې لړ کي د څو نورو بهرنیو مستخدمینو نومونه اخلي، چي د تابوت د لېږدولو لپاره له کابله جبل السراج ته په موټر کي رسېدلي وو. په هغوی کي د یوه نوم سټکلیف Sutcliffe دئ، چي غالبا به زموږ د بحث همدا سټ Sut وي. د نورو نومونه اورام Oram او مک لافلین Mclaughlin دي. د سورډ Sword په نامه دیو بل چا نوم هم په دغه ډله کي ستـه. دی له کابله پر موټرسایکل باندي جبل السراج ته د بیکر د پوښتني لپاره ورغلی و.[3] دا به ښایي په کابل کي لومړنی موټر سایکل وي، چي وارد سوی و.)

## مسټر هالیډې Mr. Halliday

دی د کلکتې ښار د پولادو د یوې کمپنۍ استازی و، چي د امیر لپاره یې د پلونو، ماښیو او کار خانو ټول پولاد برابرول[4] د ده په انجنیرۍ د کابل پر سیند باندي د جلال آباد او لغمان پر لاره د درونټې په سیمه

---

(۱) جیویټ ـ ۲۵۶ مخ.

(۲) هماغه اثر ـ ۲۶۱ مخ.

(۳) هماغه اثر ـ ۳۲۳ مخ.

(۴) جیویټ ـ ۲۵ مخ حاشیه.

کي د اوسپني یو اوږد پل، چي اوږدوالی یې ۳۰۶فوټه و، د ۱۳۳۰ق کال د صفري په میاشت(۱۹۱۱م) کي جوړ سو. د نوموړي هالیډې په مهندسۍ په ګلبهار کي د نیلاب پل هم جوړ سوی دئ [۱]. دغه پل د ۱۹۱۱ کال د اکتوبر پر یوولسمه(میزان ـ ۱۲۹۰ش) پرانیستل سو.

## جېمز میلر James Miller

جیمزمیلر د سکاټلینډ و. د امیر حبیب الله خان د پاچهۍ پر وخت یې د بهرني مستخدم په توګه کار کاوه. کابل ته د تګ نېټه یې غالباً۱۹۰۷م کال دئ. جیمزمیلر د کابل د وړیو کارخانه، چي د ورځي یې درې سوه متره ټوکر تولیدولای سوای، په غزني کي د اوبو یو ډم او دوه درې د ګلف میدانونه جوړ کړي وو. غبار د دغه بند دجوړېدو کال ۱۹۱۲م بللی او لیکي، چي پنځوس زره جریبه مځکه یې خړوبوله (افغانستان در مسیر تاریخ... ۷۰۵مخ). د دغي فابریکې د پرانیستلو کال ۱۹۱۳م ښوول سوی دئ(پېښلیک ـ ۲۲۶مخ). د (کوټۍ ستاره)[*] د پراختیا پلان هم د نوموړي میلر لخوا برابر سوی و او د ده لخوا یې کار پر مخ وهل کېدی. دغه راز یې د امیر په مشوره په خورد کابل کي د اوبو یو بند جوړ کړ [۲]. ویل کېږي، چي دی پر امیرحبیب الله خان دومره ګران و، چي زیاتره به یې په نیمه شپه، کله چي به خوب نه ورتلی، ځان ته ورباله او مجلس به یې ورسره کاوه[۳]. له امیر سره به په ژمي جلال آباد ته هم تلی او هورې به یې ورسره د ګلف لوبه کوله. یو وخت ور ته د امیر لخوا د ګلف کلب نوی سیټ، چي په کابل کي جوړ سوی او د ده نوم و(نشان دولت) پکښې کینل سوی و، د سوغات

---

[۱] تاریخي پېښلیک ـ ۲۲۴ مخ.

[*] کوټي ستاره همدا اوسنۍ (د ستوري ماڼۍ) د بهرنیو چارو وزارت ماڼۍ ده.

[۲] جیویټ ـ ۱۲۵ـ ۱۲۶ مخونه.

[۳] هماغه اثرـ د ۲۵ مخ حاشیه.



( د ستوري ماڼۍ ) همدا اوسنی د بهرنیوچارو وزارت

په توګه ور کړه سو[۱] ده د امیر ځیني عکسونه هم اخیستي وه. امیر حبیب الله خان ور سره د خبرو په ترڅ کي په امریکا کي د جمهوري ریاست لپاره د ویلسن د کامیابېدلو خبر ور کړی و.[۲] ویلسن په ۱۹۱۲م کي د امریکا د جمهور رییس په توګه وټاکل سو. جیمز میلر په افغانستان کي اووه کاله تېر کړل. وروسته ناروغه سو او کورنۍ زور پر ولګاوه، چي بیر ته انګلستان ته ورستون سي، په پای کي په ۱۹۱۴م کال هندوستان ته په رخصتي ولاړ او بیر ته راستون نه سو. خپله استعفا یې امیر ته راولېږله. امیر د ده له دغه کاره ډېر ناراض و[۳].

## ډاکټر اوون Dr. Owen

دغه انګرېز ادعا کوله، چي کیمیا پوه دی او له ګلانو څخه د عطرونو ایستلو کار کولای سي. کله چي یې امیر حبیب الله خان ته د دغه بیزنس وړاندیز کاوه. د ګلابو له پاڼو سره یې اصلي عطر ګډ کړي وه او امیر ته یې وړاندي کړل. د امیر ډېر خوښ سول. وروسته امیر ور ته اووه پنځوس زره ډالره ور کړل، چي د افغانستان لپاره په انګلستان کي د صابون د یوې کارخانې ماشین آلات رانیسي. دغه په اصطلاح ډاکټر پیسې واخیستلې او پر هغه مخ پر خپله ټره ولاړ او تری تم سو[۴]. جیویټ وایي، چي دا کیسه د ده تر وخت وړاندي پېښه سوې وه او د دغه ډاکټر یوه باوري انجنیر ور ته وروسته بیان کړې وه.

له امیر سره په اروپایي مستخدمینو کي ځیني دغه راز دروهلي کسان نور هم وه، چي موږ د جیویټ له یاداښتو له مخي په خبر یو. زه په دې بر خه کي د جیویټ د کتاب د ۲۵۲-۲۵۵مخونو ټول مطالب

---

(۱) هماغه اثر- ۱۲۲ مخ.
(۲) هماغه اثر- ۱۲۷ مخ.
(۳) هماغه اثر- ۲۴۹ مخ.
(۴) جیویټ- ۲۵۳ مخ.

دلته رانقلوم. جيويټ ليکي: د امير دا عادت و، کله چي به د خپلو اروپايي مستخدمينو لخوا ور ته د کارخانې د موادو برآورد وسو، نو به يې نوموړي شخص ته رخصتي ور کړه او د بړآورد سويو موادو د پېرودلو لپاره به يې پيسې هم ور کړې. خو ځينو به د غدارۍ لاره واخيستله او له روپو سره به يو ځای د ډاکټر اوون په شان تری تم سول.(۱)

د ډاکټر اوون ترتري تم کېدلو وروسته امير د بمبيي يو شرکت مجبور کړ، چي دوه تنه نور د صابون جوړولو د کارخانې لپاره ور ته راولېږي.(۲) هغوی داکار وکړ، خو يو تن له دوی دوو څخه امير ته شکايت وکړ، چي دا بل سم سړی نه دئ او پر ځای دي يې دی وګومارل سي. ده درې کاله تېر کړل او په دغه مو ده کي يې د صابون جوړولو د کارخانې په نامه څلور دېواله را تاو کړل. ده به يوه لويه د اوسپني خولۍ پر سر ايښې وه او په چوکۍ کي به يې د بنايانو د کار نندارہ کوله. کله چي د بنايانو کار بشپړ سو، ده د دريو کلونو تنخواه واخسيتله او هندوستان ته په رخصتي ولاړ. د کارخانې ټول پلانونه او نخشې يې له ځان سره يووړې او ورپسې تری تم سو.

يو بل څوک، چي ځانته يې د (افغانستان د حکومت لپاره د سر انجنير) نوم ورکړی ؤ، د شاهي مانۍ لپاره د شلو کيلو واټو بر ېښنا او يو شمېر تيلفونو ذمه وهلې وه. ده هغه انګليسی شرکت مجبور کړ، چي دی يې افغانستان ته لېږلی و، چي ده ته دي د پلورل سويو موادو د بيي په سلو کي لس ورکړه سي. که دا کار و نه سي، دی به له شرکت سره اړيکي وشلوي. جيويټ وايي، ده ما ته و ويل، چي لس په سلو کي خو ممکن نه وه او ده پېشنهاد وکړ چي په دې صورت کي په نو دی خپل

(۱) دا کيسه تردې کتاب وړاندي د جيويټ په هغه.مقاله کي راغلې ده چي د امريکا په متحده ايالاتو کي په خپرېدونکي مجلې Asia کي په ۱۹۱۰ جون کي خپره سوې ده. په دغه مقاله کي يې د امير لخوا ورکړه سوي پيسې اووه څلوېښت زره ډالره ښوولي دي.

(۲) د دغو دوو تنو نومونه ما ونه موندل (هوتک).

مواد پر خرخ کړي او زیاتي پیسې به تر لاسه کړي. ده وروسته امیر دې ته و هڅاوه، چي له هندوستانه تر کابله پوري د موادو لېږدولو لپاره د بخار تراکتور رانیسي (پر داسي سړک، چي لرګي په مشکله پکښې پیداکېږي او زیاتره برخه یې بې اوبو ده). کله چي تراکتور پېښور ته را ورسېد، څوک نه و، چي سره وا دې چوي. امیر انجنیر ته و ویل، چي پخپله دي ور پسې ولاړ سي او تراکتور دي راولي. انجنیر ولاړ او دې نتیجې ته ورسېد، چي بیرته افغانستان ته ستون نه سي او پر ځای یې خپله استعفا ور ولېږي... د تراکتور پیسې مخکي له مخکي ورکړه سوي وې... ده په هندوستان کي د کلکتې له یوه اخبار سره په مرکه کي و ویل، چي ده درې کاله په کابل کي د هایډروالکتریک پر پروژه او نورو بلاو بترو باندي کار وکړ... د کابل سراج الاخبار په دې برخه کي یو مطلب خپور کړ او دی یې غل و باله او ادعا یې وکړه، چي ده د حکومت پنځوس زره هندوستانۍ روپۍ تښتولي دي... جیویټ لیکي، د حیرانتیا وړ نه ده، چي د افغانانو په عقیده اروپایان ټول شیطانان دي.

دی زیاتوي: له دغو ښاغلو اروپایانو څخه یو تن کوهستان ته راغی. یوه ورځ یې راته و ویل، چي غواړي د دغي سیمي لپاره پر امیر باندي د پنبه وو یوه کارخانه خرڅه کړي. ماور ته و ویل "تر دې بې ګټي کار بل نسته، ځکه په ټوله سیمه کي دومره پنبه نه پیدا کېږي، چي یوه اوونۍ دي کارخانه په وچلېږي".

ده اورېږ و ښورولې او وې ویل "بلا توره په پسې. زه خپله کارخانه خرڅوم او ځان څني بېغمه کوم. د پنبه وو د کارخانې دغه ماهر، چي زیات مشهور هم و، و ویل "افغانان چي څومره ډېر و غولوې، هغومره ډېر پر ګرانېږي" او دا رښتیا وه... د امیر له فرانسوي اشپز پرته، چي یو ارټیسټ و او د زیاترو اروپایانو په شان یې د میاشتي یو زرهندۍ روپۍ تنخواه وه، نورو ټولو اروپایانو ځانونه انجنیران بلل...[1].

---

[1] د دغه فرانسوي اشپز د هویت په باب مي هیڅ و نه موندل. (هوتک).

جیویټ وایي: یوه ورځ امیر د زړه خواله راسره وکړه او د استخدام سویو اروپایانو له چلنده یې په نفرت سره شکایت وکړ او زیاته یې کړه "آخر زه یو پاچا یم. د یوه دوکاندار په شان چنې نسم وهلای" جیویټ زیاتوي، چې امیر پخپله له افغاني اصولو سره سم تل ډېر انصافداره و، ښه سلوک یې کاوه، ښه تنخواه یې ورکوله او په مقابل کې یې د مناسب چلند هیله هم لرله.

مولانا محمد علي قصوري چې په دغه وخت کې یې[1] د حبیبیې مدرسې د استاد او ور پسې د مدیر په توګه کار کاوه، پخپلو خاطراتو کې لیکي: " ... د یوه اسلامي حکومت دا فکر چې انګریز کارکوونکی د هغه مامور دی، ډېره ستره تېروتنه ده. انګرېز هر چیري چې وي ... هیڅکله خپل ځان د بل حکومت کارکونکی نه بولي، بلکې هغه ځان د انګرېز ملازم بولي او ټول کړه وړه یې د بریتانیې د اهدافو او عملي حکمت سره مله او برابر وي ... "[2]

## د غاښو ډاکټر [×]

جیویټ د ۱۹۱۶م کال د دسمبر د دېرشمي نېټې په یوه لیک کې د غاښو د یوه امریکایي ډاکټر یادونه کوي، چې د ده دغاښو علاج یې په وړیا توګه ورکړی و. دی زیاتوي، چې دغه ډاکټر خورا ګپاوو سړی و، په عمر دېرش کلن ښکارېدی او په اوونۍ کې یې دوه زره روپۍ (۶۶۰ډالره) عاید درلود. د هر وار غاښ ډکولو پر سر یې اضافي سوغاتونه او بخششې هم ګټلې. په یوه سهار یې زما په مخ کې دوه ساعتونه وګټل. یوه دانه شهزاده ور کړه او بله سپه سالار نادر شاه.[3]

---

[1] میوند مجله ـ دوهم کال ـ شلورمه ګڼه ـ ۱۷ مخ.

[2] د دې ټولو دروهلو انجنیرانو بیانونه جیویټ په هغه مقاله کې راوړي دي چې په ۱۹۲۰ جون کې یې د Asia په مجله کې خپره کړې ده.

[×] د دغه ډاکټر نوم یې نه دئ راوړی او ماهم و نه موند.

[3] جیویټ د سپه سالار محمد نادر خان نوم هر ځای(نادر شاه) لیکلی وي؟ (هوتک)

دی وایي: یوه شپه زه د ده ځای ته ورغلم. دی پر کور نه و. چي راغی په یوه کځوړه کي دوه سوه Sovereigns [1] ور سره وې، چي امیر صاحب د سوغات په ډول ور کړي وې. ده و ویل، چي امیر فکر کاوه، زه به یې وا نه خلم خو ګټه یې ور و نه رسوله. پر ده باندي سوغاتونه اوریدل. اصلاً خو له در باریانو سره یو څه کول، په تېره بیا د درد تسکینول، پخپله معنا د سوغاتونو او غټو جایزو ګټل.[2]

## فینل Fanne l

دا سړی د امیر حبیب الله خان موټروان او په ختهٔ انګریز و. د امیر لخوا د همدې کار لپاره استخدام سوی و. د میاشتي یې زر روپۍ تنخواه ورکوله. اووه کاله یې پر همدې دنده پرله پسې تېر کړل. په ۱۹۱۴م کال انګلستان ته دمعدې د زخم د علاج لپاره ولاړ او بیا راستون نه سو.

## ټېلر Taylor

د دغه شخص یادونه د جیویټ په یادانښتو کي سته، نور یې نه پېژنم. جیویټ لیکي: د ۱۹۱۳کال د جنورۍ پر دیارلسمه د امیر لخوا راته د رخصتۍ اجازه راکړه سوه. هالیډې Halliday او ټېلر Taylor دوولس زره روپۍ را د غاړي کړې، چي په دې ډول زما سره د نغدو روپو شمېر دېرش زرو ته ورسېد(د څلورو یابو ګانو بار)[3]

---

[1] یو ډول د سرو زرو انګلیسۍ سکې وې، چي هري یوې یې یو پوند ارزښت درلود.
[2] د دغه ډاکټر بیان د جیویټ د کتاب په ۲۹۵ مخ کي راغلی دئ.
[3] جیویټ ـ ۱۷۶مخ. د هالیډې په باب وګورئ زما د همدې لیکني ۶۳ مخ. باید و ویل سي، چي دا اروپایي مستخدمینو نغدي پیسې له کابله تر پېښوره پر یابو ګانو وړل کېدلې. ځکه یو خو کاغذي نوټونه رواج نه وو او بل بانکي سیستم هم وجود نه درلود.

## پیر کرافورډ perry Crawford
## او
## پاټریک کیلي Patrick Kelly

دوی دواړه د جبل السراج د بر ښښنا په دستګاه کي د مرستیال انجنیر په توګه کار کاوه. دوی د ۱۹۱۲ م کال د اپریل پر اته ویشتمه کابل ته ورسېدل ۱۹۱۴م کال پوري هورې پاته وو. کرافورډ امریکایي و او جیویټ يې د یوه لایق سړي په توګه نوم اخلي او وایي "کله چي ده زما سره کار پیل کړ، نور انجنیران په کابل کي بېکاره ناست وو."[۱]

## ډاربي Darby

دی د امیر حبیب الله خان لخوا د جیولوجیسټ په توګه د ډبرو د سکرو او قیمتي ډبرو د پلټلو لپاره استخدام سوی و. دی او مسټر هالیډې Halliday په یوه وخت کي له افغانستانه و وتل.[۲]

## الکسانډر مکرابرټ Alexander Mcrobert

دی د انګلستان تبعه او د هند د کانپور ایالت د وړیو فابریکې مشر و. په ۱۹۱۸م کال افغانستان ته راغلی و، چي د خپلي کمپنۍ د پراختیا امکانات مطالعه کړي.[۳]

داسي ښکاري، چي د جېمزمیلر په لاس د وړیو کارخانه به د کانپور د همدغي کمپنۍ په همکارۍ جوړه سوې وي.[۴]

---

(۱) جیویټ – ۷۶، ۱۱۵ مخونه.
(۲) جیویټ – ۳۴ مخ حاشیه.
(۳) جیویټ – ۳۱۲ مخ.
(۴) و ګورئ: زما د همدې لیکني ۶۴ مخ.

## رضابېګ

دا سړی په "شین سترګو" کي نه راغلي او تورک و. د امیر حبیب الله خان په وخت کي یې نوم د بهرنیو مستخدمینو په کتار کي اخیستل کېږي. دی د باروت جوړولو متخصص و او د باروت جوړولو فابریکه د ده په مشري چلېدله. وایي ډېر شیک پوش سړی و او د وروستي اروپایي موډ جامې یې اغوستلې. د میاشتي یې څلور سوه ډالره تنخواه اخیستله. ده زیار ایست، چي بې دوده باروت جوړ کړي او ویل کېږي، چي پر دې کار بریالی هم سو[1] ارواښاد میر غلام محمد غبار د ده نوم اخلي او لیکي "در فابریکه حربی کابل نیز برای بار اول توسط رضا بیگ ترکی (باروت سفید) یا باروت بیدود ساخته شد.[2]

## ډاکټرماني بېګ

دغه تورکی جراح هم د امیر حبیب الله خان په مستخدمینو کي و. لوړ تحصیلات یې په پاریس کي سر ته رسولي و. د کابل ښار د روغتون مشري د ده پر غاړه وه. نوموړي. د شري ناروغۍ واکسین جوړ کړ. جیویټ د ده نوم اخلي او وایي، چي دغه روغتون د افغانستان په شرایطو کي بد روغتون نه و.[3]

## ډاکټر منیر بای

دی هم د امیرحبیب الله خان په پاچهي کي د کابل د حکومتي روغتون مشر و. په کال ۱۹۱۴ع کي چي اوسکارفون نیدرمایر المانی له یوه هیئت سره کابل ته راغلی و، له نوموړي ډاکټر منیربای سره یې د بابر په بڼ کي کتلي و. ډاکترمنیربای له دغه الماني هیئت سره ډېره

---

(۱) جیویټ - ۳۰۶ مخ.
(۲) غبار - افغانستان درمسیر تاریخ - ۷۰۵ مخ.
(۳) جیویټ - ۳۰۸ مخ.

خواخوږي درلوده او د نوموړي هیئت او افغاني مقاماتو په تېره بیا د سردار نصرالله خان تر منځ د اړیکو د ټینګولو په کار کي هڅي کولې. نیدرمایر پخپله سفرنامه کي د ډاکټرمنیربای روغتون د کابل ښار په ختیځه برخه کي ښیي. (اوسکارفون نیندرمایر... افغانستان د هند ستره دروازه ـ پښتو ژباړه ۶۴ مخ ـ ۲۰۰۰ م کال)

## پای




د افغاني مصنوعاتو د پلورلو دوکان

کابل ـ افغانستان ـ ۱۶۰۵ع



د غوربند پر سیند باندي د پله جوړولو د کار جریان

( د جیویټ عکاسي )



افغاني کارگران ـ ۱۹۰۵ع

# Blueeyed Employees

## In Afghanistan




By:

Mohammad Masoom Hotak